# د کتاب په اړه


د کتاب نوم : د فقهي کتابونو له پانړو څخه (٥)

لیکوال : مفتي کفایت الله وردگ

د کمپیوټر چارې : محمد نذیر (ذبیح) 03138182431

د چاپ چارې : ابو منظر (افغاني)

د چاپ وار : لمړی

د چاپ شمېره : ۱۰۰۰ ټوکه

ZamZam



زم زم

Publication Company

خپرندویه ټولنه

Zamzam_publication@yahoo.com



00923009808094
00923009101098

Unit R 7 Alwajid Plaza, Faisalcolony Chawk, Dalazak road
Peshawar, KPK, Pakistan




# د فقهي كتابونو لپاره څو خبرې

په زړونو كې د اسلامي جذبې لرونكو څو ورونو زمونږ ددې لپاره ملا تړلې ده چې تر پورتني نوم لاندې د كتابونو يوه سلسله روانه وساتو پدې سلسله كې مونږ كوښښ كوو چې په ساده او روانه پښتو كې د ينې ضروري مسئلې را غونډې او خپلو پښتنو ورونو ته يې وړاندې كړو سره ددې چې پدې موضوع كې كتابونه له وړاندې نه هم ډير دي هرچا د خپل وس مطابق كوښښ كړى دى مونږ د هغوى د ټولو كوښښونو قدر كوو او د الله ① نه ورته اجر عظيم غواړو لكن په زمزم كې شريكو ملګرو چې ددې سلسلې لپاره كومه نقشه تياره كړيده هغه تر بهتر څخه هم بهترينه ده پدې سلسله كې به داسې مسئلې را جمع كيږي چې په اسلامي معلوماتو كې څوك د صفر نه واخلي د مهارت تر حد پورې يې ورسوي او ددې سلسلې به له ډيرو صفاتو څخه يو صفت دا وي چې كه څوك په ځان ددې د مطالعې التزام وكوي نو بغير د استاذ نه به په كور كې دى ترينه داسې مسئلې زده كولى شي لكه ژوندى استاذ چې دده سره په كور كې وي .

پدې كتابونو كې :

تاسې ته ستاسې په ژبه ديني مسائل وړاندې کول .

لتاسې سره د سمې لارې په پيدا کولو کې مرسته کول .

تاسې ته د اسلامي مطالعې لپاره د ښو او فايده منو موادو په لاس درکول .

له لويو کتابونو څخه لويې خبرې تاسې ته ستاسې د اسانتيا لپاره د وړو رسالو په شکل کې درکول .

ديني ضروري مسئلې چې کېدای شي اوس ستاسې هېرې شوې وي بېرته تاسې ته در په زړه کول .

مقدس دين ته په شکلې پښتو ژبه خدمت کول .

او داسې نور مطلبونه خوندي دي .

پدې سلسله کې مونږ کوښش کوو چې يوه خبره هم د خپل دماغ نه پکې ځای نه کړو د کتاب په آخر کې به مونږ د هغه فتاواوو او کتابونو لست خامخا ستاسې خدمت ته وړاندې کوو چې مونږ ترېنه اخذ کوو او په دې رساله کې به ټولې خبرې د حضرت امام ابي حنيفه رحمه الله د مذهب او مسلک مطابق وي .

که پدې اړه ستاسې څه ډول اعتراض، سوال، نيوکه، نکته، نظريه او يا مشوره وي نو ددې

سلسلې چلونکي به يې لتاسې څخه نه يوازې د کور وداني په ويلو سره په ورين تندي واوري بلکه د بيا چاپ کولو په وخت به ستاسې مشوره د خپلو کتابونو ښائست وګرځوي

لله الحمد داده ستاسې تر لاسونو پورې ددې مبارکې لړۍ پنځمه کړۍ در ورسېده او پدې کړۍ کې مونږ د نکاح او طلاق اړوندې يو څه ضروري مسئلې را ټولې کړې دي امید دی چې ستاسې د خوښې وړ به وګرځي .

مننه

د زمزم خپرندويه ټولنې اداره

E-mail: zamzam_publication@yahoo.com

Fb.com/zamzam07



# سریزه

نکاح هغه طریقه ده چې الله پخپله د انسانانو د ژوند ، توالد تناسل، د انساني ژوند د سلسلې د رواني ساتلو لپاره انتخاب کړېده او یو نظام دی چې الله د دوو انسانانو (نارینه او ښځینه) د یو بل سره د نېږدې کېدلو لپاره غوره کړی دی ستاسې په لاس کې کتاب کې د نکاح تعریف، اهمیت ، شرطونه او ځینې مسئلې تاسې ته بیانوي ترڅو پدې اړه ستاسې په علم کې زیادت راولي .
نکاح په ژوند کې پاکي ده ، تسکین دی ، د الله د قدرت نښه ده ، د نسل ساتنه ده الله د نکاح په اړه فرمايي :
سورة الرُّوم آية ٢١

**وَ مِنۡ اٰیٰتِہٖۤ اَنۡ خَلَقَ لَکُمۡ مِّنۡ اَنۡفُسِکُمۡ اَزۡوَاجًا لِّتَسۡکُنُوۡۤا اِلَیۡہَا وَ جَعَلَ بَیۡنَکُمۡ مَّوَدَّۃً وَّ رَحۡمَۃً ؕ اِنَّ فِیۡ ذٰلِکَ لَاٰیٰتٍ لِّقَوۡمٍ یَّتَفَکَّرُوۡنَ (٢١)**

ترجمه : او دهغه د نښو د قدرت څخه دي چې هغه تاسې ته ستاسې له نفسونو څخه جوړې پیدا کړې ترڅو تاسې (د هغوی طرف ته په میلان سره) سکون پیدا کړئ او ستاسې په مینځ کې یې مینه او مهرباني پیدا کړه بېشکه پدې کې نښې د قدرت دي د هغه کسانو لپاره چې هغوی فکر (غور) کوي.

سره ددې چې زما دا وړوکی کتاب نشي کولی چې د نکاح ټولې مسئلې را ټولې کړې لکن بیا هم زه کوښښ کوم چې ځینې ضروري مسئلې هغه چې په ورځني ژوند کې ډېرې په کار کیږي را ټولې کړم او شروع کوم له تعریف نه .

# د نکاح تعریف

نکاح په لغت کې یو ځای والي ته ویل کیږي شریک والي او خلط کېدلو ته ویل کیږي عرب وایي (نكح المطر الارض) یعني باران په زمکه کې خلط شو کله چې په باغ کې ځینې ونې ځینو ته نیږدې شي نو عرب وایي (تناكحت الاشجار) ونې یو بل ته سره نیږدې شوې.

په اصطلاح کې (عقد يتضمن إباحة وطء بلفظ إنكاح أو تزويج أو ترجمته) یعني داسې عقد دی چې وطی روا کوي که په لفظ د نکاح سره وي یا تزویج سره وي او یا په بله ژبه ددې ترجمه وي.

نو کله نکاح عقد ته ویل کیږي لکه عرب چې وایي نكح فلان فلانة معنی یې دا وي چې فلاني له فلانی سره د نکاح عقد وکولو او کله کله جماع ته ویل کیږي لکه الله ① چې فرمایي :

فَإِن طَلَّقَهَا فَلاَ تَحِلُّ لَهُ مِن بَعْدُ حَتَّىَ تَنكِحَ زَوْجاً غَيْرَهُ

(یعني که یې بیا طلاقه کړه بیا ده ته بېرته تر هغه وخته پورې نه روا کیږي ترڅو بل خاوند ورسره جماع ونه وکوي)

# د نکاح فضیلت

په قران کریم کې الله ① فرمايي چې نکاح او واده کول د پیغمبرانو له سنتو څخه دي ا الله فرمايي :

سورة الرعد آية ٣٨

وَ لَقَدۡ اَرۡسَلۡنَا رُسُلًا مِّنۡ قَبۡلِکَ وَ جَعَلۡنَا لَہُمۡ اَزۡوَاجًا وَّ ذُرِّیَّۃً ؕ

ترجمه : او بېشکه مخکې له تا هم مونږ پیغمبران لېږلي دي او هغوی ته مو جوړې (مېرمنې) او اولادونه ورکړي وو.

په بل ځای کې الله ① فرمايي :

سورة النِّسَاء آية ٣

وَ اِنۡ خِفۡتُمۡ اَلَّا تُقۡسِطُوۡا فِی الۡیَتٰمٰی فَانۡکِحُوۡا مَا طَابَ لَکُمۡ مِّنَ النِّسَآءِ مَثۡنٰی وَ ثُلٰثَ وَ
رُبٰعَ ۚ فَاِنۡ خِفۡتُمۡ اَلَّا تَعۡدِلُوۡا فَوَاحِدَۃً اَوۡ مَا مَلَکَتۡ اَیۡمَانُکُمۡ ؕ ذٰلِکَ اَدۡنٰۤی اَلَّا تَعُوۡلُوۡا ؕ(٣)

ترجمه : او که تاسې ددینه ډاریدی چې د یتیمانو په مینځ کې به عدل ونشئ کولی بیا په نکاح کړئ هغه ښځې چې ستاسې خوښې وي دوه دوه ، دری دری او یا څلور څلور او که تاسې ډاریدئ چې تاسې د خپلو مېرمنو په مینځ کې عدل نشئ کولئ نو بیا یوه بس ده او یا هغه وینزې چې

تاسې يې مالکان ياست پدې سره به تاسې د بې انصافي نه وساتل شئ .

په بل ځای کې الله ① فرمايي :

## سورة البقرة آية ٢٣٥

وَ لَا جُنَاحَ عَلَيۡكُمۡ فِيۡمَا عَرَّضۡتُمۡ بِهٖ مِنۡ خِطۡبَةِ النِّسَآءِ اَوۡ اَكۡنَنۡتُمۡ فِيۡۤ اَنۡفُسِكُمۡ ؕ عَلِمَ اللّٰهُ اَنَّكُمۡ سَتَذۡكُرُوۡنَهُنَّ وَ لٰكِنۡ لَّا تُوَاعِدُوۡهُنَّ سِرًّا اِلَّاۤ اَنۡ تَقُوۡلُوۡا قَوۡلًا مَّعۡرُوۡفًا ؕ وَ لَا تَعۡزِمُوۡا عُقۡدَةَ النِّكَاحِ حَتّٰى يَبۡلُغَ الۡكِتٰبُ اَجَلَهٗ ؕ وَ اعۡلَمُوۡۤا اَنَّ اللّٰهَ يَعۡلَمُ مَا فِيۡۤ اَنۡفُسِكُمۡ فَاحۡذَرُوۡهُ ۚ وَ اعۡلَمُوۡۤا اَنَّ اللّٰهَ غَفُوۡرٌ حَلِيۡمٌ (٢٣٥)٪

ترجمه : په تاسې څه ګناه نشته که تاسې په اشارو کې ښځې ته د نکاح بلنه ورکوئ (هغه ښځې چې خاوندان يې وفات شوي وي او دوی لا تر اوسه په عدت کې وي) الله ① خبر دی چې تاسې به هغوی ته نکاح ور يادوئ لکن له هغوی سره به پټه وعده نه کوئ (د عدت په وخت کې) مګر دا چې تاسې کومه ښه خبره وکوئ له دوی سره د نکاح اراده مه کوئ تردې چې د دوی عدت ختم شوی نه وي پدې پوه شئ چې الله ① په هغه څه پوهيږي چې ستاسې په زړونو کې دي د الله ① نه وډار شئ او پدې پوه شئ چې الله ① بښونکی او مهربان دی .

په بل ځای کې الله ① فرمايي : **سورة النُّورآية ٣٢**

وَ اَنۡکِحُوا الۡاَیَامٰی مِنۡکُمۡ وَ الصّٰلِحِیۡنَ مِنۡ عِبَادِکُمۡ وَ اِمَآئِکُمۡ ؕ اِنۡ یَّکُوۡنُوۡا فُقَرَآءَ یُغۡنِہِمُ اللّٰہُ مِنۡ فَضۡلِہٖ ؕ وَ اللّٰہُ وَاسِعٌ عَلِیۡمٌ (٣٢)

ترجمه : اوپه واده کوئ هغه بې واده ښځې او سړي خپل او په نکاح کړئ هغه چې نېکان وي ستاسې له غلامانو او وینزو څخه که دوی غریبان وي الله ① به یې له خپل فضل نه مالداران کړي بېشکه الله ① فراخي راوستونکی او عالم دی

په بل ځای کې الله ① فرمایي :

## سورة اعراف آية ١٨٩

هُوَ الذى خَلَقَكُم مِّن نَّفْسٍ وَاحِدَةٍ وَجَعَلَ مِنْهَا زَوْجَهَا لِيَسْكُنَ إِلَيْهَا

ترجمه : الله ① هماغه ذات دی چې تاسې یې له یوه نفس څخه پیدا کړئ او له هماغه نفس نه یې پیدا کړه دهغه جوړه ترڅو له هغې نه سکون حاصل کړي .

د ښځو سره د ژوند په اړه الله ① فرمایي :

## سورة النساء آية ١٩

ۚ وَعَاشِرُوهُنَّ بِٱلۡمَعۡرُوفِ ۚ فَإِن كَرِهۡتُمُوهُنَّ فَعَسَىٰٓ أَن تَكۡرَهُواْ شَيۡـٔٗا وَيَجۡعَلَ ٱللَّهُ فِيهِ خَيۡرٗا كَثِيرٗا 

ترجمه :او د هغوی (خپلو مېرمنو) سره په ښه طریقه ژوند وکوئ او که هغه تاسې نه خوښوئ دا څه عجیبه نه ده چې یو شی ستاسې خوښ نه وي لکن الله ① په هغې کې ستاسې لپاره زیات خیر واچوي.

په همدې اړوند الله ① په بل ځای کې فرمایي :

## سورة البقرة اية ۲۲۸

وَلَهُنَّ مِثْلُ ٱلَّذِى عَلَيْهِنَّ بِٱلْمَعْرُوفِ ۚ وَلِلرِّجَالِ عَلَيْهِنَّ دَرَجَةٌ ۗ وَٱللَّهُ عَزِيزٌ حَكِيمٌ ﴿٢٢٨﴾

ترجمه : او په سړیو باندې د دوی همداسې حق دی لکه په دوی باندې چې د سړیو دی په نېکه طریقه سره او د سړیو لپاره په هغوی باندې درجه ده الله ① تعالی غالب او د حکمت خاوند دی .

په بل ځای کې الله ① فرمایي :

## سورة النساء آية ۱

يَاأَيُّهَا النَاسُ اتَّقُوا رَبَّكُمْ الذى خَلَقَكُمْ مِنْ نَفْسٍ وَاحِدَةٍ وَخَلَقَ مِنْهَا زَوْجَهَا وَبَثَّ مِنْهُمَا رِجَالًا كَثِيرًا وَنِسَاءً

ترجمه : ای خلکو وډار شئ د ستاسې د هغه رب نه چې تاسې یې له یو نفس نه پیدا کړئ او له هغه نه یې د هغه مېرمن پیدا کړه او له هغوی دواړو

نه يې (د زمکې په مخ) خپاره کړل ډېر سړي او ښځې .

په ابي داود کې حديث دی حضرت عبد الله بن مسعود ❼ فرمايي : **التمسوا الغنى فى النكاح ، يقول الله ① :**

**(إِن يَكُونُوا فُقَرَاء يُغْنِهِمُ اللَّهُ مِن فَضْلِهِ وَاللَّهُ وَاسِعٌ عَلِيمٌ)**

ترجمه : يعني په نکاح کې مالداري ولټوئ الله ① فرمايي (که دوی فقيران وي الله ① به يې له خپل فضل نه مالداران کړي) .

د نکاح په اړه رسول الله ☸ فرمايي :

(أربع من سنن المرسلين: الحناء ,والتعطر,والسواك ,والنكاح) رواه الترمذي

ترجمه : څلور شيان د پيغمبرانو له سنتونو څخه دي : نکريزې، عطر لګول، مسواک استعمالول، او نکاح کول)

رسول الله ☸ فرمايي :

**تنْكَحُ اَلْمَرْأَةُ لِأَرْبَعٍ : لِمَالِهَا , وَلِحَسَبِهَا , وَلِجَمَالِهَا , وَلِدِينِهَا , فَاظْفَرْ بِذَاتِ اَلدِّينِ تَرِبَتْ يَدَاكَ (متفق عليه)**

يعني ښځه د څلورو شيانو له امله په نکاح اخستل کيږي (د نکاح لپاره خوښول کيږي) ١. د هغې د مال له امله ٢. د هغې د جمال (ښائست) له امله ٣. د هغې د نسب له امله ٤. د هغې د دين له امله او ته په هغې باندې کامياب شه

چې د ښه دین خاونده وي لاس د په خاورو سپېره شه (ددې مطلب ښېرا نه ده بلکه مطلب يې دی چې مالدار شې څکه مال ټول په اصل کې خاوره ده (فتح الباري) )

رسول الله ﷺ فرمايي :

## يَا مَعْشَرَ الشَّبَابِ ، " مَنِ اسْتَطَاعَ مِنْكُمُ الْبَاءَةَ فَلْيَتَزَوَّجْ ..." أَخْرَجَهُ الْبُخَارِيُّ

ای ځوانانو په تاسې کې چې د چا وس وي هغه د واده وکوي .

د حضرت انس بن مالک ❼ په يو روايت کې هغه فرمايي :

جاء ثلاث رهط إلى بيوت أزواج النبي صلى الله عليه وسلم، يسألون عن عبادة النبي صلى الله عليه وسلم، فلما أخبروا كأنهم تقالوها، فقالوا: أين نحن من النبي صلى الله عليه وسلم؟ قد غفر الله ① له ما تقدم من ذنبه وما تأخر، قال أحدهم: أما أنا فإني أصلي الليل أبدا، وقال آخر: أنا أصوم الدهر ولا أفطر، وقال آخر: أنا أعتزل النساء فلا أتزوج أبدا، فجاء رسول الله صلى الله عليه وسلم فقال: (أنتم الذين قلتم كذا وكذا؟ أما والله أني لأخشاكم لله وأتقاكم له، لكني أصوم وأفطر، وأصلي وأرقد، وأتزوج النساء، فمن رغب عن سنتي فليس مني) (متفق عليه)

ترجمه  دري ډوله کسان د رسول الله ﷺ د مېرمنو کورونو ته راغلل د رسول الله ﷺ د عبادت په اړه يې پوښتنې کولې کله چې هغوی ورته د رسول الله ﷺ د عبادت په اړه و فرمايل نو دوی وويل : مونږ ته ګوره او رسول الله ﷺ ته ګوره  هغه ته خو الله ① د هغه مخکني او وروستني ګناهونه ټول معاف کړي دي  نو په دوی کې يو وويل : زه به همېشه د شپې مونځ کوم .
 بل وويل : زه به ټول عمر روژه نيسم او کله به يې هم نه ماتوم .
 بل وويل : زه به د ښځو نه عزل کوم او کله به هم واده نه کوم (خپل ټول وخت به عبادت ته ورکوم)

رسول الله ﷺ راغلو دوی ته يې وويل : تاسې هغه کسان ياست  چې دا دا خبرې مو کړې دي؟ رښتيا خبره داده چې زه تر تاسې ټولو نه د الله ① څخه زيات ډاريدونکی او وېريدونکی يم لکن زه روژه نيسم او کله يې خورم ، کله مونځ کوم او کله ويده کيږم، او د ښځو سره واده کوم هغه کسان چې زما د سنتو څخه مخ واړوي زما له ډلې څخه نه دي .

حضرت انس ابن مالک ❼ فرمايي رسول الله ﷺ فرمايل : تَزَوَّجُوا اَلْوَدُودَ اَلْوَلُودَ . إِنِّي مُكَاثِرٌ بِكُمُ اَلْأَنْبِيَاءَ يَوْمَ اَلْقِيَامَةِ (متفق عليه)

يعنې تاسې د داسې ښځو سره واده کوئ چې هغه مينه ناکې وي او د ډېرو اولادونو پيدا کونکې وي بېشکه زه به د قيامت په ورځ ستاسې په ډېر والي باندې فخر کوم .

نکاح يو هغه عمل دی چې انسان ته په اسلامي طريقه او په حلاله لاره د جماع کولو ضمينه مساعدوي او جماع د ۳ شيانو لپاره کيږي :

۱. د توالد او تناسل لپاره چې الله ① انسان ته نېک اولاد ورکړي او نېک اولاد د الله هغه نعمت دی چې هم په دنيا کې انسان ته په کار کيږي او هم له مرګ نه وروسته دده د نېکوعملونو ثواب او د هغه دعاګانې په والدينو پسې رسيږي او ددې لوی نعمت لپاره يوازې نکاح سبب کېدلی شي .

۲. له بدن څخه د هغه اوبو د وېستلو لپاره چې کله کله يې په بدن کې پاتې کېدل بدن ته تاوان کوي .

۳. صرف د خپل جنسي حاجت د پوره کولو لپاره او د لذت اخستلو لپاره د او د بدن د جنسي تقاضې د پوره کولو لپاره . (په جنت کې به جماع صرف د همدې غرض لپاره ترسره کيږي) (تحفة العروس)

# نکاح نیم دین

نکاح اګر چې په ظاهر نظر یو دنیایي کار ښکاره کیږي لکن دا د دین برخه ده په یو حدیث کې چې صحیح الترغیب و الترهیب نقل کړی دی رسول الله ﷺ فرمایي :

**إِذَا تَزَوَّجَ الْعَبْدُ فَقَدِ اسْتَكْمَلَ نِصْفَ الدِّينِ ، فَلْيَتَّقِ الله فِيما بقي**

کله چې انسان واده وکوي نو نیم دین یې پوره شو په پاتې نیم کې دې د الله ① نه و ډارشي .

# نکاح د زِنا څه د حفاظت کامیابه لاره

زنا په کبیره ګناهونو کې لویه ګناه ده چې ځان ساتل ترینه په هر صورت کې فرض دي الله تعالی انسان بیا بیا پدې پلید عمل کې د واقع کېدلو څخه ډار کړي دي او دا هغه ګناه ده چې دعالم نظام ورسره خرابیږي د یو چا عزت پکې له مینځه ځي، نسب پکې ورکیږي ، د یو معصوم پیدا شوي طفل پلار پکې ورکیږي او کله کله پکې د محبت نه ډکو انسانانو په مینځ کې دشمني پیدا کیږي کله کله پکې د قتل معاملې هم راځي او داسې نور امام احمد رحمه الله ① فرمایي چې په اسلام

کې تر قتل وروسته د زنا ځخه لویه ګناه ماته نه ده معلومه الله تعالی یې په حرمت او نا روا والي باندې تاکید کوي او فرمايي :

سورة الفرقان آیة ٦٨ او ٧١

وَٱلَّذِينَ لَا يَدۡعُونَ مَعَ ٱللَّهِ إِلَٰهًا ءَاخَرَ وَلَا يَقۡتُلُونَ ٱلنَّفۡسَ ٱلَّتِي حَرَّمَ ٱللَّهُ إِلَّا بِٱلۡحَقِّ وَلَا يَزۡنُونَۚ وَمَن يَفۡعَلۡ ذَٰلِكَ يَلۡقَ أَثَامًا ﴿٦٨﴾ يُضَٰعَفۡ لَهُ ٱلۡعَذَابُ يَوۡمَ ٱلۡقِيَٰمَةِ وَيَخۡلُدۡ فِيهِۦ مُهَانًا ﴿٦٩﴾ إِلَّا مَن تَابَ وَءَامَنَ وَعَمِلَ عَمَلًا صَٰلِحًا فَأُوْلَٰٓئِكَ يُبَدِّلُ ٱللَّهُ سَيِّـَٔاتِهِمۡ حَسَنَٰتٖۗ وَكَانَ ٱللَّهُ غَفُورًا رَّحِيمًا ﴿٧٠﴾ وَمَن تَابَ وَعَمِلَ صَٰلِحًا فَإِنَّهُۥ يَتُوبُ إِلَى ٱللَّهِ مَتَابًا ﴿٧١﴾

ترجمه : او د الله ① رښتیني بندګان هغه دي چې د الله ① سره بل معبود نه مني او هغه نفس چې الله ① یې وژل حرام کړي دي هغه نه وژني او دوی زنا نه کوي او څوک چې دا کوي دا په سخته ګناه کې مبتلا کیږي د قیامت په ورځ به هغه ته عذاب دوه چنده کیږي او په ذلت او خواري سره به دوی پکې هلته همېشه پاتي کیږي مګر هغه چې توبه یې

وویسته او نېک عملونه یې وکول نو د هغه کسانو به الله ① ګناهونه په نیکیو ورته بدل کړي او الله ① بښونکی او مهربان دی او هغه کسان چې توبه وباسي او نیک عملونه کوي بېشکه هغوی د الله ① لوري ته رجوع کوي .

په پورتني آیت کې الله ① زنا د شرک او د قتل سره په یو ځای راوړه او سزا یې ورته په اور کې د همیشه والي وښوده او د عذاب څو چنده کېدل او سپکاوی یې ورته یاد کړل تر هغه پورې چې انسان توبه ایستلې نه وي او الله ① ته راجع شوی نه وي .

په بل ځای کې الله ① فرمایي :

## سورة الاسراء آية ٣٢

## وَلاَ تَقْرَبُواْ الزِّنَى إِنَّهُ كَانَ فَاحِشَةً وَسَاء سَبِيلاً

ترجمه : زنا ته مه نېږدې کیږئ ځکه دا یوه فاحشه ده او ډېره بده لاره ده .

په پورتني آیت کې الله ① ورته فاحشه ویلې ده او بده لاره یې ګڼلې ده ترڅو د انسانانو په نفسونو کې ترینه نفرت او کینه پیداشي په صحیح بخاري کې د حضرت عمر وبن میمون الاودي ❼ نه روایت دی هغه فرمایي: رأيت فى الجاهلية قرداً زنا بقردة فأجتمع القرود عليهما فرجموها حتى ماتا (صحيح البخاري)

يو وخت د جاهليت په زمانه کې په يو ځای کې ما وليدل چې يو شادو د بلې شادي سره دا بد عمل کولو نور شادو ګان وربانديې را ټول شول او دوی يې دوارهٔ په تيږو باندې وويشتل ترڅو دوارهٔ ووژل شول .

په دنيا کې هرڅوک دا کوښښ کوي چې کامياب شي هرڅوک د کاميابي لټون کوي لکن الله ① په قران کريم کې د کاميابي لپاره دا خبره ضروري ګڼلې ده چې د خپلې شرمګاه حفاظت به انسان کوي بيا به کامياب کيږي الله ① فرمايي :

## سورة المومنون آية ٥-٧

وَٱلَّذِينَ هُمۡ لِفُرُوجِهِمۡ حَـٰفِظُونَ ﴿٥﴾ إِلَّا عَلَىٰٓ أَزۡوَٰجِهِمۡ أَوۡ مَا مَلَكَتۡ أَيۡمَـٰنُهُمۡ فَإِنَّهُمۡ غَيۡرُ مَلُومِينَ ﴿٦﴾ فَمَنِ ٱبۡتَغَىٰ وَرَآءَ ذَٰلِكَ فَأُوْلَـٰٓئِكَ هُمُ ٱلۡعَادُونَ ﴿٧﴾

ترجمه : (په تحقيق سره کامياب شول) هغه کسان چې د خپلو شرمګاهونو حفاظت کوي مګر صرف د خپلو ښځو او د هغه وينزو نه چې دوی يې مالکان دي خپلې شرمګاه نه ساتي (او د هغوی سره په مباشرت کولو کې) په دوی باندې هيڅ ډول ملامتيا نشته او ددينه بغير چې چا د شهوت لپاره د

نورو طلب وکولو دوی (د الله ① د معلوم کړل شوي حد نه ) تجاوز وکولو.
په پورتنیو دریو آیتونو کې درې لویې خبرې شوې دي .

١. هغه څوک چې د خپلې شرمګاه حفاظت ونه کوي هغه نشي کامیاب کېدلی .
٢. هغه څوک چې د شرمګاه حفاظت ونه کوي هغه به ملامت وي .
٣. هغه څوک چې د خپلې شرمګاه حفاظت ونه کوي هغوی تجاوز کونکي دي .
نو ددې ټولو مشکلاتو او د انسان په مینځ کې نکاح د سپر او ډال په توګه کار کوي .

# د نکاح په نه کولو وعید

لکه مخکې چې تېر شول رسول الله ﷺ فرمایل : د چا چې وس وي هغه د نکاح وکوي همدارنګه د هغه کسانوته چې وس یې وي او نکاح نه کوي رسول الله ﷺ وعید ورکړی دی په یو حدیث کې د حضرت ابي قلابة ❼ نه روایت دی هغه فرمایي چې رسول الله ﷺ فرمایل : "مَنْ تَبَتَّلَ فَلَيْسَ مِنَّا " (چا چې قطع وکوله (په واده نه کولو سره یې نسل قطع

کړو او یا یې ځان له دنیا نه قطع کړو لکه راهبانو به چې کول) نو هغه زمونږ له ډلې څخه نه دی.

ځکه دا د نصاراوو طریقه وه چې هغوی به فکر کاوه که مونږ نکاح و کوو نو بیا مونږ الله ① ته نشو رسېدلای او دا نکاح نه کول به یې هم عبادت ګڼلو .

په پورتني حدیث کې علماء فرمايي د وعید وجه داده چې هر انسان نفسي تقاضې لري او د نکاح نه کول د ډېرو مشکلاتو لامل ګرځیږي ځکه فطري تقاضې انسان له خپل ځان څخه نشي ختمولی او کله کله دا تقاضې داسې حد ته هم ورسیږي چې هغه د انسان تر برداشت لوړې شي نو کله چې انسان نکاح وکوي ددې تقاضو د پوره کولو لپاره بهترینه ذریعه شي .

سره ددې چې انسان په ځان خوراک کم کړي روژې ونیسي او نور کوښښونه وکوي نو دا فطري تقاضې یو څه اندازه کمولی شي لکن دا ختمېدلی نه شي .

او هغه کسان چې په مالي یا صحي لحاظ د نکاح کولو څخه معذور وي هغوی ددې حدیث څخه مستثنی دی .



# په نکاح کې بېړه کول

کله چې هلک ځوان شي او جینۍ پېغله شي نو چې څه صحي او مالي مشکلات نه وي نو په واده کې بېړه کول مستحب دي ترڅو ځوان او ځوانه د ځوانۍ له شروع څخه له فساد او فتنې څخه وساتل شي رسول الله ﷺ فرمايي :

**"إِذَا أَتَاكُمْ مَنْ تَرْضَوْنَ خُلُقَهُ وَدِينَهُ فَزَوِّجُوهُ إِلَّا تَفْعَلُوا تَكُنْ فِتْنَةٌ فِي الْأَرْضِ وَفَسَادٌ عَرِيضٌ ".**

ترجمه : کله چې تاسې ته داسې څوک راشي چې دهغه اخلاق او ديانت ستاسې خوښ وي نو تاسې هغه ته واده ورکړئ او که داسې ونه کوئ نو دا به په زمکه کې فتنه او لوی فساد شي .

حضرت علي رضی الله عنه فرمايي ماته رسول الله ﷺ وفرمايل :

يا علي ثلاثة لا تؤخروهن : الصلاة اذا أتت ، والجنازة اذا حضرت ، والأيم اذا وجدت كفوا

ترجمه: ای علي دری شيان مه وروسته کوه : مونځ چې وخت يې شي ، جنازه چې تياره شي او پېغله جينۍ چې سيال ورته پيدا شي (رواه الترمذي)

حضرت عبد الله ابن عباس ❼ فرمايي رسول الله ﷺ فرمايل :

مَنْ وُلِدَ لَهُ وَلَدٌ فَلْيُحْسِنِ اسْمَهُ وَأَدَبَهُ ، فَإِذَا بَلَغَ فَلْيُزَوِّجْهُ فَإِنْ بَلَغَ وَلَمْ يُزَوِّجْهُ فَأَصَابَ إِثْمًا ، فَإِنَّمَا إِثْمُهُ عَلَى أَبِيهِ

د چا چې زوى پيدا شي نو ښه نوم د وربانديڅ کېږدي او ښه ادب د ورکړي کله چې بالغ شي نو واده د ورته وکوي او که بالغ شو او واده يې ورته ونه کولو هغه څه ګناه وکوله نو ګناه يې په پلار ده (مشکواة)

د حضرت انس بن مالک ❼ او حضرت عمر ابن الخطاب ❼ نه روايت دى هغوى فرمايي : رسول الله ☸ فرمايل : في التوراة مكتوب : من بلغت ابنته اثنتي عشرة سنة ولم يزوجها فأصابت إثما فإثم ذلك عليه . (ا البيهقي في شعب الإيمان)

ترجمه : په تورات کې ليکل شوي دي د چا چې لور دولس کلونو ته ورسيږي او واده يې نه کړي که هغې ګناه وکوله نو دا ګناه يې په پلار ده .



# استخاره

کله چې په مېړمن او خاوند کې ټول اړخونه وکتل شي او د هغوی د کورنۍ حالتونه هم په نظر کې ونیول شي نو بیا ښه خبره داده چې دوی استخاره وکوي استخاره د الله ① سره په یو کار کې مشوره کول دي پوره تفصیل او طریقه یې ددې سلسلې په اول کتاب کې د مانځه په برخه کې تېره شویده دلته یې یو ځل ستاسې د توجه لپاره را ګرځول غواړم .

⇦ دوه رکعته مونځ به وکوي او د مانځه له شروع نه به یې په نیت کې وي چې د استخارې لپاره مونځ کوي او د مانځه نه وروسته به راتلونکې دعا ولولي :

اللَّهُمَّ إنِّي أَسْتَخِيرُكَ بِعِلْمِكَ وَأَسْتَقْدِرُكَ بِقُدْرَتِكَ وَأَسْأَلُكَ مِنْ فَضْلِكَ الْعَظِيمِ فَإِنَّكَ تَقْدِرُ وَلا أَقْدِرُ وَتَعْلَمُ وَلا أَعْلَمُ وَأَنْتَ عَلامُ الْغُيُوبِ اللَّهُمَّ إنْ كُنْتَ تَعْلَمُ أَنَّ هَذَا الأَمْرَ (دلته به د هغه کار نوم واخلي چې د کوم کار لپاره استخاره کوي د مثال په توګه پدې ځای کې ددې معلوم کس یا معلومې جینۍ سره واده کول دي) خَيْرٌ لِي فِي دِينِي وَمَعَاشِي وَعَاقِبَةِ أَمْرِي أَوْ قَالَ : عَاجِلِ أَمْرِي وَآجِلِهِ فَاقْدُرْهُ لِي وَيَسِّرْهُ لِي ثُمَّ بَارِكْ لِي فِيهِ اللَّهُمَّ وَإِنْ كُنْتَ تَعْلَمُ أَنَّ

**هَذَا الأَمْرَ** (دلته به خپل كار ياد كړي ) **شَرٌّ لِي فِي دِينِي وَمَعَاشِي وَعَاقِبَةِ أَمْرِي أَوْ قَالَ : عَاجِلِ أَمْرِي وَآجِلِهِ فَاصْرِفْهُ عَنِّي وَاصْرِفْنِي عَنْهُ وَاقْدُرْ لِي الْخَيْرَ حَيْثُ كَانَ ثُمَّ ارْضِنِي بِهِ . وَيُسَمِّي حَاجَتَهُ** (خپل حاجت به دلته ياد كړي) په يو روايت كې به **( ثُمَّ رَضِّنِي بِه)** هم وريسې ووايي **( رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ)**

چې دا استخاره وكوي نو ذهن به يې خپله يو طرف ته لاړ شي او كه دا احساس يې هم نه درلود نو د الله ① سره چې څوك مشوره وكوي الله ① هغه ته صرف سمې او دده د ګټې نه ډكې لارې ته دده هدايت كوي .



# د جینۍ کتل

کله چې د دوو کورنیو په مینځ کې نورې خبرې تولې حل شي خاوند کولی شي جینۍ وګوري لکن پداسې حالت کې چې بل څوک به ورسره وي او صرف لاسونه او مخ به یې ښکاره کیږي د حضرت مغیرة ابن شعبة ❼ نه روایت دی چې یوې ښځې ته مې د واده پیغام ورلیږلی وو رسول الله ﷺ راغخه و پوښتل : أَنَظَرْتَ إِلَيْهَا ؟ (لیدلې د ده؟) ما ورته وویل : نه یا رسول الله ﷺ بیا رسول الله ﷺ راته وویل : فَانْظُرْ إِلَيْهَا فَإِنَّهُ أَجْدَرُ أَنْ يُؤْدَمَ بَيْنَكُمَا (ورشه ویې ګوره دا ستاسې دواړو لپاره غوره ده) (بخاري)

حضرت جابر ❼ فرمایي رسول الله ﷺ فرمایل : إِذَا خَطَبَ أَحَدُكُمُ الْمَرْأَةَ فَإِنِ اسْتَطَاعَ أَنْ يَنْظُرَ إِلَى مَا يَدْعُوهُ إِلَى نِكَاحِهَا فَلْيَفْعَلْ

یعني : کله چې تاسې کومې ښځې ته د نکاح غوښتنې پیغام ور لیږلو نو که مو کولی شوای چې هغه ووینئ نو ویې ګورئ . (ابن ماجه / ابي داود)

# د بل چا د پيغام لپاسه پيغام نه ليږل.

کله چې څوک خبر شي چې فلانۍ جينۍ ته د چا لخوا د واده پيغام ورغلی دی نو د هغه د پاسه د بيا پيغام نه ورليږي ترڅو يې چې هغه ته ځواب نه وي ورکړی کله چې معلومه شوه چې هغه مخکني کس ته يې ځواب ورکړو او له هغه سره د دوی خپلوي نه کيږي او يا مخکنی پيغام ليږونکی ورته اجازه وکوي بيا به ورته خپل پيغام ور وليږي د بخاري شريف په يو حديث کې دي.

نهى ﷺ أن "يَخْطُبَ الرَّجُلُ عَلَى خِطْبَةِ أَخِيهِ حَتَّى يَتْرُكَ الْخَاطِبُ قَبْلَهُ أَوْ يَأْذَنَ لَهُ الْخَاطِبُ"

يعني رسول الله ﷺ منع کړيده لدينه چې يو څوک د خپل ورور (بل مسلمان) د نکاح د پيغام لپاسه خپل پيغام ور وليږي تردې چې هغه مخکينی کس يې پريږدي او يا ده ته اجازه وکوي.

# کونډې ته د نکاح پيغام ور ليږل

هغه ښځه چې خاوند يې په حق ورسيږي تر عدت پورې (څلور مياشتې او لس ورځې) به دې ښځې ته څوک د نکاح پيغام نه ور ليږي او که اشارې

ورته کوي (په غوږ یې وهي) نو خیر دی الله ① پدې اړه فرمایي :

سورة البقرة آية ٢٣٥

وَلاَ جُنَاحَ عَلَيْكُمْ فِيمَا عَرَّضْتُم بِهِ مِنْ خِطْبَةِ النِّسَاء أَوْ أَكْنَنتُمْ فِى أَنفُسِكُمْ عَلِمَ اللّهُ أَنَّكُمْ سَتَذْكُرُونَهُنَّ وَلَـكِن لاَّ تُوَاعِدُوهُنَّ سِرًّا إِلاَّ أَن تَقُولُواْ قَوْلاً مَّعْرُوفًا وَلاَ تَعْزِمُواْ عُقْدَةَ النِّكَاحِ حَتَّىَ يَبْلُغَ الْكِتَابُ أَجَلَهُ

ترجمه : او په تاسې څه ګناه نشته که تاسې په کنایي خبرو کې (کونډې ښځې ته چې لا تر اوسه په عدت کې وي) د نکاح پیغام ورکوئ او یا له هغې سره د نکاح کولو خواهش په زړه کې ساتئ الله ① ښه پوهیږي چې یو وخت به یې تاسې ورته یادوئ لکن (د عدت په شپو کې) له هغې سره پټه وعده مه کوئ (چې له عدت وروسته به زما سره نکاح کوې) مګر دا چې تاسې یوه نېکه خبره کوئ او (ترڅو چې عدت تېر شوی نه وي) تاسې د نېکاح تړلو ټینګه اراده مه کوئ او پدې پوه شئ چې کومې خبرې ستاسې په نفسونو کې دي الله ① وربانديې پوهیږي نو د هغه الله ① نه و ډار شئ او پدې پوه شئ چې الله ① بښونکی او نرمي لرونکی دی .

# د نکاح آثار

کله چې دوو کسانو په مینځ کې نکاح وشي لاندې اثار وربانـدې مرتب کيږي .

۱. ناکح او منکوحه يو د بل له بدن څخه په روا او په شرعي توګه فايده اخستلی شي .

۲. په نکاح کې چې کوم مهر ياد کړل شي که لږ وي او که زيات په خاوند يې ورکول لازميږي.

۳. خوراک جامه او هستوګنځی په خاوند بانـدې لازميږي.

٤. د خسرګنی حرمتونه صورت مومي يعني اوس دا ښځه کله هم د سړي د پلار سره او يا سړی د ښځې د مور سره نکاح نشي کولی.

٥. ددينه وروسته چې اوس ددې ښځې ماشومان پيدا کيږي نسب يې د همدې سړي نه ثابتيږي .

٦. د دوی دواړو په مينځ کې اوس د ميراث مسئلې عملي کيږي.

۷. که ددې سړي نورې ښځې وې دا ښځه اوس د هغوی سره علی السوية په حقونو کې شريکيږي.

۸. په ښځه باندې لازم دي چې ددې سړي متابعت او اطاعت به کوي .

# د نکاح فایدې

۱. هغه کس چې واده کوي الله ① یې مرسته کوي رسول الله ☸ فرمایي :

ثلاثة حق على الله عونهم: المجاهد في سبيل الله، والمكاتب الذي يريد الأداء، والناكح الذي يريد العفاف

ترجمه : درى کسان دي د هغوى مرسته په الله ① ده .

۱. هغه چې د الله ① په لاره کې جهاد کوي .

۲. هغه مکاتب (غلام) چې د خپل ځان د خلاصي لپاره کوښښ کوي.

۳. هغه نکاح کونکی چې صرف د ځان د پاکي (له گناه نه د ځان ساتلو) لپاره نکاح کوي.

۲. واده کول د تنهایي د لرې کولو لپاره اسلامي ، اخلا قي او مذهبي لاره ده رسول الله ☸ فرمایي :

حُبِّب إليَّ من دنياكم: النساء والطيب، وجُعلتْ قرَّة عيني في الصلاة.

ترجمه : ستاسې له دنیا نه ماته زنانه (بیبیانې) او پاکي محبوب دي او زما د سترگو یخ والی (خوشحالي) په مانځه کې کېښودل شوی دی .

۳. له خپلې مېرمن سره مینه او کور والی کول ثواب دی رسول الله ﷺ چې کله دا خبره وکوله نو صحابه وو ورته وویل یا رسول الله ﷺ مونږ به خپل شهوت پوره کوو او ثواب به هم مونږ ته راکول کیږي؟ رسول الله ﷺ ورته وویل هو ! ولی که دا په ناروا کې پوره شي نو ګناه نشته؟ دوی ورته وویل هو شته بیا رسول الله ﷺ ورته وویل نو ځکه چې په روا طریقه باندې پوره شي نو د ګناه نه ځان وساتل شو ځکه دا اجر دی .

٤. واده او نکاح د انساني ژوند د بقا ذریعه ګرځي او همدا د نېک اولاد د پیدا کېدلو وسیله کېدلی شي او نیک اولاد هغه نعمت دی چې هم انسان ته په ژوند کې په کار کیږي او هم له مرګ نه وروسته .. رسول الله ﷺ فرمایي :

إذا مات ابن آدم انقطع عمله إلا من ثلاث: صدقة جارية، أو علم يُنْتفَع به، أو ولد صالح يدعو له

ترجمه : کله چې انسان مړ شي د هغه عمل دده نه قطع شي مګر د دریو شیانو ثواب ورپسې ور رسیږي ۱. صدقه جاریة ۲. هغه علم چې له ده څخه پاتې وي خلک ترېنه فایده اخلي ۳. نېک اولاد ورڅخه پاتې وي هغوی ورته دعا کوي.

٥. ښځه او خاوند د یو بل لپاره په ژوند کې ښه مرستندوی شي او دواړه یو له بل سره مرسته

کوي ښځه ورته د کور کارونه کوي او خاوند ورته مصارف را پیدا کوي پدې ډول د دوی خپل ژوند او د هغوی دماشومانو ژوند په سمه توګه روان وي .

٦. په واده سره د ښځې او خاوند لپاره د خپلوانو کړی نوره هم فراخه شي او خپلوان یې زیات شي د خاوند لپاره د ښځې خپلوان ټول او د ښځې لپاره د سړي خپلوان ټول خسر خیل شي او دا کله کله ډېر فایده من شي لکه په غزوة بني المصطلق کې (تفصیل یې د اسلامي تاریخ له پانو څخه کتابونو کې تېر شوی دی) چې کله رسول الله ﷺ ډېر کسان بندیان ونیول په هغوې کې یوه بختوره بي بي حضرت جویریة بنت الحارث (رضی الله عنها) هم وه رسول الله ﷺ هغه په نکاح کړه نو کله چې صحابه پوه شول چې دا قبیله اوس د رسول الله ﷺ خسر خیل شول نو هغه ټول بندیان یې د رسول الله ﷺ د خسر ګنۍ د احترام لپاره پرېښودل .

٧. د خپل کوروالـه او خپلې بي بي سره نیکي کول د ثواب ذریعه کیږي رسول الله ﷺ فرمایي :

وإنك لن تنفق نفقة تبتغی بها وجه الله إلا أجرت علیها، حتی ما تجعل في في (فم) امرأتك (متفق علیه)

یعني ته چې د الله ﷻ د رضا د حاصلولو لپاره څه ډول نفقه کوې تاته وربانـدې اجر درکول کیږي

تردي چې هغه نوړۍ چې د خپلې ښځې په خوله کې یې دې ورکوي په هغې سره هم ثواب درکول کیږي .

## د نکاح حکم

د نکاح حکم د انسان له حالاتو سره په لاندې توګه تغیر خوري:

### ۱. واجب

د هغه کس لپاره چې په ځان ډاریږي چې که نکاح ونه کوي په نا روا کې به واقع شي نو نکاح کول واجب دي ځکه د ګناه نه ځان ساتل چې په هره طریقه کیږي په انسان باندې واجب دي .

### ۲. سنت مؤکد

که په وس یې نکاح کول وي او شهوت یې هم وي نکاح ته یې زړه کیږي لکن په ځان یې اعتماد وي که نکاح ونه کوي هم په ګناه کې نه واقع کیږي نو پدې صورت کې سند موکد ده .

### ۳. مستحب

هغه کس چې په ځان یې د ګناه نه د محفوظ ساتل کېدو یقین وي او نکاح ته یې زړه نه کیږي د هغه لپاره نکاح مستحب ده .

٤. مکروه.

هغه کس چې د کومې بیماري یا عمر زیاتوالي او یا په پیدائشي ډول په جماع کولو قادر نه وي (عنین وي) او پدې پوهیږي چې که واده وکوي د میرمن حقونه نشي پوره کولی د هغه لپاره نکاح مکروه ده .

همدارنګه هغه کس ته هم نکاح مکروه ده چې مخکې یې بله مېرمن وي او دی پدې پوهیږي که دی نکاح وکوي نو د مېرمنو په مینځ کې به انصاف ونشي کولی.

همدارنګه د هغه چا لپاره هم نکاح مکروه ده چې دده ګمان وي که واده وکوي نو د مالي مشکلاتو له مخه به د مېرمن حقونه پوره نشي کړلی او نه به خپل ژوند په سمه توګه روان کړلی شي.

٥. حرامه

په هغه صورت کې نکاح حرامه ده چې انسان په دار الحرب کې ژوند کوي او د دښمنانو له لوري يې ژوند په خطر کې وي او هره لحظه د خپل ځان د خطر احساس کوي .

# محرمات

محرمات هغه ښځو ته وايي چې د سړي نکاح ورسره نه کيږي د محرماتو په اړه الله ① فرمايي :

**سورة النساء آية ٢٣ او ٢٤**

**حُرِّمَتْ عَلَيْكُمْ أُمَّهَاتُكُمْ وَبَنَاتُكُمْ وَأَخَوَاتُكُمْ وَعَمَّاتُكُمْ وَخَالاَتُكُمْ وَبَنَاتُ الأَخِ وَبَنَاتُ الأُخْتِ وَأُمَّهَاتُكُمُ اللاَّتِي أَرْضَعْنَكُمْ وَأَخَوَاتُكُم مِّنَ الرَّضَاعَةِ وَأُمَّهَاتُ نِسَآئِكُمْ وَرَبَائِبُكُمُ اللاَّتِي فِي حُجُورِكُم مِّن نِّسَآئِكُمُ اللاَّتِي دَخَلْتُم بِهِنَّ فَإِن لَّمْ تَكُونُواْ دَخَلْتُم بِهِنَّ فَلاَ جُنَاحَ عَلَيْكُمْ وَحَلاَئِلُ أَبْنَائِكُمُ الَّذِينَ مِنْ أَصْلاَبِكُمْ وَأَن تَجْمَعُواْ بَيْنَ الأُخْتَيْنِ إَلاَّ مَا قَدْ سَلَفَ إِنَّ اللّهَ كَانَ غَفُوراً رَّحِيماً {23} وَالْمُحْصَنَاتُ مِنَ النِّسَاء إِلاَّ مَا مَلَكَتْ أَيْمَانُكُمْ كِتَابَ اللّهِ عَلَيْكُمْ وَأُحِلَّ لَكُم مَّا وَرَاء ذَلِكُمْ أَن تَبْتَغُواْ بِأَمْوَالِكُم مُّحْصِنِينَ**

غَيْرَ مُسَافِحِينَ فَمَا اسْتَمْتَعْتُم بِهِ مِنْهُنَّ فَآتُوهُنَّ أُجُورَهُنَّ فَرِيضَةً وَلاَ جُنَاحَ عَلَيْكُمْ فِيمَا تَرَاضَيْتُم بِهِ مِن بَعْدِ الْفَرِيضَةِ إِنَّ اللّهَ كَانَ عَلِيماً حَكِيماً }

ترجمه : حرامې دي په تاسې باندې (نكاح نه ورسره كيږي) ستاسې موراني ، ستاسې لوراني، ستاسې خوراني، ستاسې عمه گانې، ستاسې خاله گانې، ستاسې وريرې، ستاسې خورزې ، ستاسې رضاعي مورانې، ستاسې خواښې گانې، ستاسې پر كټيانې (د ښځې لور چې د بل خاوند څخه وي) د هغه ښځو نه چې تاسې ورسره جماع كړې وي او كه تاسې ورسره جماع نه وي كړې نو بيا يې كه (د بل خاوند نه لور په نكاح كوئ) نو په تاسې څه گناه نشته (حرامې دي په تاسې باندې) ستاسې نږورانې د هغه زامنو ښځې چې ستاسې له شا گانو څخه وي او حرام دي تاسې ته دا چې دوه خورانې په يوه نكاح كې سره ټولې كړئ او هغه چې مخكې شوي دي الله ① بښونكى او مهربان دى او مېړوښې ښځې هم تاسې ته حرامې دي مگر هغه چې ستاسې لاس ته د وينزو په شكل كې راشي (اسيرانې شي) دا احكام تاسې ته الله ① ليكلي دي او ددېنه بغير نورې تاسې ته حلالې دي دا چې تاسې خپل مال مصرف كړئ او نكاح ورسره وكوئ پداسې حالت كې چې تاسې د پاكي طلب كونكي ياست نه د شهوت پوره كولو لپاره هغه ښځې چې تاسې يې په بدن

باندې فايده پورته کوئ هغوی ته يې مهرونه ورکړئ دا فرض دي او که د مقرر کولو څخه وروسته تاسې په مهر کې کمښت او يا زيادت کوئ پدې کې هېڅ ګناه نشته الله ① عالم او د حکمت خاوند دی .

# محرمات په نه ډوله دي

اول ډول

# محرمات بالنسب

هغه دي چې د نسب له امله انسان ته حرامي وي .

١. مورانې

په پورتني آيت کې الله ① فرمايي **حُرِّمَتْ عَلَيْكُمْ أُمَّهَاتُكُم**

ترجمه : حرامې دي په تاسې باندې ستاسې مورانې

په مورانو کې د سړي ټولې انا ګانې داخلې دي که د مور له اړخه وي او که د پلار له اړخه وي تر هرڅو پورې چې لوړې وي.

٢. لورانې

الله ① فرمايي : وَبَنَاتُكُم

ترجمه : حرامې دي په تاسې باندې ستاسې لورانې په لورانو کې د سړي خپلې لورانې د لورانو لورانې او د زامنو لورانو داخلې دي تر هرڅو پورې چې ښکته وي .

۳. خورانې

الله ① فرمايي : وَأَخَوَاتُكُم

ترجمه : حرامې دي په تاسې باندې ستاسې خورانې په خورانو کې ټولې خورانې داخلې دي چې هغه د مور له اړخه وي او که د پلار له اړخه وي او که د دواړو نه وي.

٤. عمه ګانې.

الله ① فرمايي : وَعَمَّاتُكُمْ

ترجمه : حرامې دي په تاسې باندې ستاسې عمه ګانې
چې د پلار سکه خورانې وي او که ناسکه وي همدارنګه د پلار عمه ګانې د مور عمه ګانې د اناګانو او باباګانو عمه ګانې ټولې پدې ګروپ کې داخلې دي او نکاح ورسره نه کيږي .
د عمه عمه په دوه ډوه ده که دا نيږدې عمه د سړي د پلار سکه عمه وي او يا يې د پلار له لوري

عمه وي نو دهغې د عمه سره بیا نکاح نه کیږي او که دا نیږدې عمه د سړي د پلار صرف د مور له خوا نه وه نو بیا ورسره کیږي (عالمګیري)

## ٥. خاله ګانې

الله ① فرمایي : وَخَالاَتُكُمْ

ترجمه : حرامې دي په تاسې باندې ستاسې خاله ګانې

خاله ګانې هم ټولې خاله ګانې دي که د مور سکه خور او که ناسکه خور وي ټولې پکې داخلې دي .

د خاله خاله کې څه حکم دی؟

که نیږدې خاله د سړي سکه خاله وه د مور او پلار نه او یا یوازې د مور له لورې نه خاله وه نو بیا د هغې د خاله سره نکاح نه کیږي او که یې یوازې د پلار له لورې نه وه بیا ورسره کیږي (محیط السرخسي)

## ٦. وریرې

الله ① فرمایي : وَبَنَاتُ الأَخِ

ترجمه : حرامې دي په تاسې باندې ستاسې وریرې د ورور لورانې او دهغه لمسۍ چې هرڅومره ښکته وي دا ټولې پدې ګروپ کې داخلې دي او نکاح ورسره نه کیږي.

٧. خورزي

الله ① فرمايي : وَبَنَاتُ الأُخْتِ

ترجمه : حرامې دي په تاسې باندې ستاسې خورزې د خور لوراني او د هغه د زامنو او لورانو لوراني هرڅومره چې ښکته وي ټولې په همدې ګروپ کې داخلې دي او نکاح ورسره نه کيږي.

دا ټولې د ټول عمر لپاره سړي ته نا روا دي نکاح ورسره نه کيږي.

# محرمات بالصهرية

هغه زنانه چې د خسرګنۍ له امله انسان ته حرامې وي :
دا څلور ډلې دي:

## ۱. خواښې

الله ﷻ فرمايي : وَأُمَّهَاتُ نِسَآئِكُمْ

ترجمه : حرامې دي په تاسې باندې ستاسې خواښې ګانې

د ښځې موراو دهغې اناګانې هرڅومره چې لوړې وي که د مور له اړخه وي او که د پلار له اړخه نکاح ورسره نه کيږي.

## ۲. د ښځې لورانې او دهغې لمسيانې

الله ﷻ فرمايي :

وَرَبَائِبُكُمُ اللاَّتِي فِي حُجُورِكُم مِّن نِّسَآئِكُمُ اللاَّتِي دَخَلْتُم بِهِنَّ فَإِن لَّمْ تَكُونُواْ دَخَلْتُم بِهِنَّ فَلاَ جُنَاحَ عَلَيْكُم

ترجمه : حرامې دي په تاسې باندې ستاسې پر کټيانې (د ښځې لور چې د بل خاوند څخه وي) د هغه ښځو نه چې تاسې ورسره جماع کړې وي او که تاسې ورسره جماع نه وي کړې نو بيا يې که (د

بل خاوند نه لور په نکاح کوئ) نو په تاسې څه ګناه نشته.

چې ددې ښځې سره جماع وشي چې هرڅومره لاندې وي دا ښکته تولې پرې ناروا شي بيا ورسره نکاح نه کيږي (الحاوی القدسي)

## ٣. نږور (د زوی ښځه)

الله ① فرمايي : وَحَلاَئِلُ أَبْنَائِكُمُ الَّذِينَ مِنْ أَصْلاَبِكُمْ

ترجمه : حرامې دي په تاسې باندې ستاسې نږورانې د هغه زامنو ښځې چې ستاسې له شا ګانو څخه وي

⇦ د زوی د زوی او د لور د زوی (د لمسي) ښځه چې څومره په ښکته مرتبه کې وي تولې ناروا دي نکاح ورسره نه کيږي.

⇦ هغه هلک چې چا ورته زوی ويلي وي د هغه نه چې ښځه پاتې شي او يا يې طلاقه کړي نو نکاح ورسره کيږي صرف په ويلو سره هغه داسې نه زوی کيږي چې ښځه يې پلار ته حرامه شي. (محيط السرخسي)

## ٤. د پلار او د نيکونو ښځې

الله ① فرمايي : وَلا تَنْكِحُوا مَا نَكَحَ آبَاؤُكُمْ مِنَ النِّسَاءِ

ترجمه : او تاسې مه نکاح کوئ هغه ښځې چې په نکاح کړې وي ستاسې پلرونو.

- د پلار او د نیکونو ښځې چې د هر اړخ نه وي او که هرڅو لوړ وي نکاح ورسره نه کیږي (الحاوی القدسي)
- د خسرګنۍ حرمت هغه وخت ثابتیږي چې صحیح نکاح وشي په فاسده نکاح سره د خسرګنې حرمت نه راځي (محیط السرخسي)
- که چا داسې نکاح وکوله چې د کومو اسبابو له امله هغه فاسده وه نو په تش عقد سره ددې ښځې مور پدې سړ نه حرامیږي او که جماع یې ورسره وکوله بیا حرامیږي (البحر الرائق)
- او کله چې وطی وشي که هغه حلاله وطی وي، که په سهو سره وي، که په خطا سره وي او که زنا وي په ټولو صورتونو کې د خسرګنۍ حرمتونه لازمیږي د مثال په ډول اوس ددې ښځې مور ددې سړي سره نکاح نشي کولی. (فتاوی قاضي خان)
- که یو سړي د یوې ښځې سره زنا وکوله اوس ددې ښځې مور او اناګانې ټولې دې سړي ته حرامې دي همدارنګه ددې ښځې لورانې او لمسیانې همدارنګه ددې سړي پلرونه اوس دې ښځې ته حرام دي همدارنګه ددې سړي زامن او لمسیان اوس دوی نکاح نشي سره کولی. (فتح القدیر)

- زمونږ (د امام ابو حنيفه رحمه الله ① په مذهب) دا حرمت صرف د شهوت په نظر د مس كولو، مچي كولو او لاس لگولو ، فرج ته په شهوت سره د نظر كولو سره هم ثابتيږي (الذخيرة)
- په همدې حكم كې په شهوت سره غاړه وركول هم دي (فتاوى قاضي خان)
- همدارنگه كه يوه ښځه يو سړى په شهوت سره مس كړي سره ددې چې سړى مطمئن وي بيا هم وربانديې د خسرگنۍ حرمت لازميږي (الجوهرة النيرة)
- كه سړى د ښځې بدن مس كړي او د شهوت نيت يې نه وي نو دا حرمت وربانديې نه لازميږي (البدائع)
- كه په تياره كې سړي خپله مېرمن مس كول غوښتل او په غلطي كې تريڼه داسې لور مس شوه چې هغه لويه وه او په هغې باندې يې په غلط فهمي كې د شهوت لاس ووهلو نو د جينۍ مور (دده ښځه) ورته د ټول عمر لپاره حرامه شوه (نعوذ بالله ) (فتح القدير)
- دا مس چې حرمت لازموي هغه مس دى چې په بدن جامه نه وي او يا داسې نرۍ جامه وي چې د بدن حرارت نه منع كوي (الذخيرة)

- دا چې جينۍ څومره وي لويه حسابيږي فتوی پدې ده چې جينۍ د ۹ کلونو شي نو دا احکام وربانديې ثابتيږي (معراج الدراية)
- که د داسې ماشومې سره جماع وکوي چې هغه ډيره وړه وي او د عادي طبيعت له مخې هغې ته شهوت نه راځي نو پدې سره حرمة المصاهرة (د خسرګنۍ) حرمت نه ثابتيږي (البحر الرائق)
- او که ښځه دومره زړه شوه چې بيا ورته د عادي طبيعت له مخې شهوت نه راتلو نو د هغې سره جماع کول حرمت ثابتوي (التبيين)
- همدارنګه که يوې ښځې د داسې ماشوم سره لوبې وکولې چې د هغه سره نه کېدلې د مثال په ډول د څلورو کالو ماشوم وو نو پدې سره هم حرمت نه ثابتږي (فتح القدير)
- د لاس لګولو په وخت يا د مس کولو په وخت د شهوت اندازه د ځوان په حق کې داده چې آلت يې منتشر شي او که منتشر وي چې په انتشار کې يې زيادت راشي او د سپين ږيري او يا عنين (چې د جنسي عمل نه معذور وي او آلت يې انتشار نه کوي) د هغه په حق کې او د زنانه په حق کې په زړه کې په کوم شي بانديې خوند اخستل د شهوت حد دی (المحيط)
- که چا اقرار وکولو چې ددې ښځې د مور سره او يا لور سره ما جنسي تعلق درلود نو دده دا خبره به قبلول کيږي او دی به نيول

کیږي او دا ښځه به دده ښځه بیلیږي اګر که دا اقرار یې دهغه وخت په اړه کړی وو چې هغه وخت دوی لا نکاح نه وه کړې . (عالمګیري)

دریم ډول

# محرمات بالرضاع

هغه زنانه چې د رضاع (شودو رودلو له امله) انسان ته حرامې وي او نکاح یې ورسره نه کیږي.

الله ① فرمایي :

## سورة النساء آية ٢٣

## وَأُمَّهَاتُكُمُ اللَّاتِي أَرْضَعْنَكُمْ وَأَخَوَاتُكُمْ مِنَ الرَّضَاعَةِ

الله ① فرمایي : حرامې دي په تاسې باندې ستاسې رضاعي مورانې

ټولې هغه ښځې چې پورته په نسب او خسر ګنۍ کې تیرې شوې هغه ټولې د رضاع له لوري هم حرامیږي د مثال په ډول کوم ماشوم چې د کومې ښځې شودې وخوري نو ددې سره بیا نکاح نشي کولی لکه د خپلې مور سره یې چې نشي کولی همدارنګه دا ښځه چې کومو ماشومانو ته شودې ورکړي هغه ټولې دده خورانې دي په همدې ترتیب ټول متعلقین (محیط السرخسي)

⇦ شودې خوراک که لږ وي او که زیات وي حرمت پیدا کوي (ضروري نه ده چې ماشوم به موړ

شوی وي بیا به حرمت لازمیږي) بلکه چې هرڅومره وي حرمت ثابت دی (الهدایة)

⇦ لکن بیا یې هم لږ تر لږه اندازه داده چې دومره وي د ماشوم معدې ته ورسیږي (السراج الوهاج)

⇦ لکن دا د شودو خوراک به د شودو د خوړلو په وخت کې وي چې د امام صاحب په مذهب دیرش میاشتې اود امام ابي یوسف او امام محمد رحمه الله له نظره دوه کاله دی (فتاوی قاضي خان) پدې معنی چې که د دیرشو میاشتو نه وروسته ماشوم شودې وخوري پدې سره حرمت نه لازمیږي . (الهدایة)

⇦ لکن په نورو مسئلو کې د رضاعت موده دوه کاله ده یعني په هغه صورت کې چې څوک د یو ماشوم د دوو کلونو د پوره کېدلو څخه وړاندې ښځه طلاقه کړي نو هغه طلاقه شوې ښځه اوس چې ماشوم ته شودې ورکوې نو دهغې پیسې غواړي نو تر دوو کلونو پورې به پلار مجبور کول کیږي چې دهغې پیسې ورکړي د دوو کلونو څخه وروسته وربانديې دا جبر نشته (فتاوی قاضي خان)

⇦ سره ددې چې ماشوم ته شودې ښځه ورکوي لکن حرمت ددې ښځې خاوند ته هم ثابت کیږي ددېنه و روسته ددې ښځې خاوند د هغه ماشوم پلار شو چې ښځې یې کوم ته شودې ورکړې د مثال په توګه که دا شودې خوړونکې ماشومه وي نو دا

چې کله لویه شي ددې ښځې د خاوند سره نکاح نشي کولی ځکه هغه یې رضاعي پلار دی او ښځه هم ترڅو چې د سړي نه لرې وي په سینه کې یې شودې نه راځي نو دا د مور تر سینه په راوتلو شودو کې پلار هم شریک دی . (الظهیریة)

⇦ نو کوم ماشوم چې د چا شودې وخوري دهغوی پورتني خلک او ښکتني خلک ټول وربانديې حرام شول که په نسب سره وي یعني ددې ښځې زامن او لمسیان او همدارنګه د سړي او د دوی دواړو پلرونه او نیکونه او همدارنګه که په رضاعت سره وي یعني که دا ښځه بل ماشوم ته شودې ورکړي هغوی هم په دوی حرام دي نکاح یې ورسره نه کیږي هغه ماشومان هم ددې ماشوم رضاعي ورونه او خویندې دي. (التهذیب)

په رضاعت سره هر هغه څه حرامیږي چې په نسب سره حرامیږي او یا په خسرګنۍ حرامیږي لکن په څه مسئلو کې یې فرق دی د مثال په ډول :

⇦ په نسب کې د خپل زوی خور څوک نشي په نکاح کولی ... ځکه د زوی خور به یا ستا څخه وي نو ستا لور شوه او یا به ستا د مېرمن څخه وي نو هغه ستا ربیبه شوه حکم یې تېر شوی دی چې هغه حرامه ده لکن د رضاعي زوی چې خور وي او هغې ستا د مېرمن شودې نه وي خوړلې نو نکاح ورسره صحیح کیږي ځکه هغه ستا رضاعي لور نه ده .

⇦ په نسب کې څوک د ورور مور نشي نکاح کولی ځکه که دا مور دده ورسره شریکه وي نو بیا خو د دواړو مورده او که دا مور دده ورسره شریکه نه وي یعني د دوی دواړو پلار یو او مورانې یې بدلې وي نو ددې بل ماشوم مور دده د پلار منکوحه ده حرمت یې مخکې تېر شو او د رضاعي ورور نسبي مور په نکاح کېدلی شي په هغه صورت کې چې دوو ماشومانو د یوې اجنبې ښځې شودې و خوړلې دوی سره ورونه شول او دوی چې کله لوی شي نو د هر یومور له یو بل نه بالکل اجنبي ښځې دي نو نکاح ورسره کېدای شي.

⇦ که چا یوه لویه ښځه درلوده او یوه وړوکې ماشومه یې وکوله چې تر دېرشو میاشتو نه کشره وه دا مشره ښځه راغله کشرې ته یې شودې ورکړې په خاوند باندې دواړه حرامې شوې (الهدایة)

⇦ همدارنګه که دا مشره ښځه ویده وه او ماشومه راغله شودې یې ترینه وخوړې نو په خاوند باندې دواړه د ټول عمر لپاره حرامې شوې همدارنګه که چا په زور باندې مشره مجبوره کړه چې ماشومې ته شودې ورکړي نو بیا هم حرمت ثابت دی په ټولو صورتونو کې . (عالمګیري)

څلورم ډول

# محرمات بالجمع

دا هغه ښځې وي چې په نکاح کې د نورو یا بلې ښځې له امله دا حرامې شوې وي او دا په دوه ډوله دي .

## ١. د اجنبي ښځو له امله حرامې وي .

⇦ یو سړي ته نه دي روا چې تر څلورو زیاتې ښځې په نکاح کړي او کله چې انسان څلور ښځې وکوي ترڅو چې دا څلور واړه ژوندۍ او دده په نکاح کې وي دی له پنځمې سره نکاح نشي کولی نو دا حرمت د پنځمې د نکاح ددې امله دی چې دده په نکاح کې څلور جمع شوي دي سره ددې چې دا څلور واړه به د پنځمې ښځې سره څه ډول خپلوي لري او که یې نه لري اعتبار ورته نشته (محیط السرخسي)

⇦ هغه کس چې غلام وي (مخکې به وو) نو هغه ته د دوو ښځو نه د زیاتو کولو اجازه نه وه (البدائع)

⇦ که یو سړي په ترتیب سره د ښځو سره نکاح کولې او د پنځو سره یې نکاح وتړله نو د اولو څلورو سره نکاح صحیح ده پنځمه دده په نکاح کې نه ده دی او پنځمه ښځه به سره جدا کول کیږي او که په یوه عقد کې یې د پنځو واړو سره نکاح وکوله نو یوه هم دده په نکاح

کې نه ده نکاح د ټولو سره باطله ده دی به له ټولو ښځو نه بېلول کيږي .

⇦ همدارنګه که څوک نوی مسلمان شي او هغه تر اسلام وړاندې پنځه ښځې کړې وي نو که يې يوه په بله پسې کړې وې نو دده او د پنځمې په مينځ کې به جدايي راوستل شي او که يې ټولې په يو ځای کړې وي نو د ټولو نه به بېل کړل شي او که يې اول يوه کړې وه بيا يې څلور کړې وې نو صرف د يوې سره يې نکاح صحيح ده (فتاوى قاضي خان)

## ۲. د خپلوانو ښځو له امله

الله ① فرمايي : وَأَن تَجْمَعُواْ بَيْنَ الأُخْتَيْنِ

ترجمه : حرامې دي په تاسې باندې دا چې دوه خورانې په يوه نکاح کې سره يوځای کړئ

⇦ کله د يوې ښځې سره نکاح ددې امله نه صحيح کيږي چې له دې وړاندې د سړي په نکاح کې داسې ښځه وي چې دهغې سره د يو سړي په نکاح کې ددې بلې ښځې نکاح نه صحيح کيږي .

⇦ د خور سره د خور جمع کول نا روا دي يعنې چې يوه خور په نکاح کې وي د بلې خور سره نکاح نه صحيح کيږي دا که د نسب خورانې وي او که په رضاع کې سره خورانې وي (محيط السرخسي)

⇦ همدارنګه ښځه او دهغې عمه او خاله سره جمع کول نا روا دي يعني چې کومه ښځه په نکاح کې وي ددې د عمه  او خاله سره نکاح نه کيږي که د نسب نه وي او که د رضاع نه .

⇦ پدې مسئله کې قاعده داده چې که په هغه دوو ښځو کې چې سړی يې نکاح کول غواړي يوه نارينه فرض کړي نو د بلې سره يې نکاح نه کيږي نو دوی دواړه په يوه نکاح کې جمع کول نا روا دي (المحيط)

⇦ د ښځې او د هغې د خاوند لور چې د بلې ښځې نه وي په يوه نکاح کې جمع کېدلی شي ځکه که دا ښځه نارينه فرض کړو نو هغه کولی شي چې دهغې جينی سره واده وکوي  سره ددې چې که هغه جينۍ (ددې ښځې د خاوند لور د بلې ښځې نه) نارينه فرض کړو نو ددې ښځې سره نکاح نشي کولی ځکه دا خو به يې د پلار منکوحه وي (عالمګيري)

⇦ که دوه خورانې يې په يوه عقد کې په نکاح کړې وي د دوی په مينځ کې به جدايي راوستل کيږي او که جماع يې ورسره نه وه کړې نو هيڅ شی لازم هم نه دي او که جماع يې ورسره کړې وه نو دواړو ته به د مهر مثل او د ياد کړل شوي مهر کې چې هر يو لږ وي هغه به ورکوي . (المضمرات)

⇦ او که جدا جدا يې په نکاح کړې وې نو چې کومه يې اوله په نکاح کړېده دهغې نکاح صحيح

ده د دوهمې فاسده ده د هغې او دده په مینځ کې به بېلتون راوستل کیږي لکه په مخکنۍ مسئله کې که جماع ورسره نه وه شوې بیا هېڅ شی نه لازمیږي او که جماع ورسره شوې وه نو په مهر مثل او تعین شوي مهر کې چې هر یو کم وو هغه به ورکړي او ددېنه وروسته به دا عدت تیروي (تفصیل به یې په خپل ځای راشي) او که ددې ښځې ماشوم پیدا شي نو همدا سړی یې پلار ګڼل کیږي او سړی به تر هغه وخته پورې د خپلې ښځې سره د نیزدیکت نه ځان ساتي چې ددې بیلې کړل شوې ښځې عدت پوره شي (محیط السرخسي)

⇦ که دوه خورانې یې جدا جدا په نکاح کړې لکن اوس دا نه وه معلومه چې کومه یې اول په نکاح کړېده نو د خاوند نه به ددې بیان وغوښتل شي که هغه بیان وکولو چې هرڅنګه هغه وویل هماغه صحیح دي او که یې ونه ویل نو دواړه به ورڅخه بیلول کیږي (شرح الطحاوي)

پنځم ډول

## الاماء المنكوحة على الحرة

(د غلامانو او وینزو د وخت مسئله ده د بحث د پوره کولو په موخه ورته اشاره کول غواړم) دا هغه وینزې دي چې په اصیله باندې ور نکاح کړل

شي يعني اول د حرې سره نکاح شوې وي بیا د وینزې سره نکاح کیږي دا نا روا دي او که اول د وینزي سره نکاح شوې وه بیا د اصیلې سره کیږي نو نکاح صحیح ده او که دواړه په یوه عقد کې په نکاح شي نو د اصیلې نکاح صحیح ده او د وینزې باطله ده (فتاوی قاضي خان)
شپږم ډل

# المحرمات التي یتعلق بها حق الغیر

هغه ښځې چې د بل چا په نکاح کې وي دهغوی سره نکاح کول هم حرام دي او نکاح ورسره نه کیږي .

⇦ همدارنګه هغه ښځه چې په عدت کي وي که د طلاق عدت وي او که د مرګ عدت وي (خاوند ورڅخه مړ شوی وي) ترڅو یې چې عدت تېر نشي نکاح ورسره نه کیږي .

⇦ همدارنګه که په شبه کې یا نکاح فاسده کې یا سهو کې جماع ورسره شوې وي نو په ښځه عدت تېرول لازم وي پدې ټولو عدتونو کې نکاح نه صحیح کیږي (البدائع)
اوم ډول

# المحرمات بالشرك

دا هغه ښځې وې چې د شرک او کفر له امله يې مسلمان سړی نشي په نکاح کولی او نکاح ورسره نه کيږي.

الله ﷻ فرمايي :

## سورة البقرة اية ٢٢١

وَلَا تَنكِحُوا الْمُشْرِكَاتِ حَتَّى يُؤْمِنَّ وَلَأَمَةٌ مُؤْمِنَةٌ خَيْرٌ مِنْ مُشْرِكَةٍ وَلَوْ أَعْجَبَتْكُمْ وَلَا تُنكِحُوا الْمُشْرِكِينَ حَتَّى يُؤْمِنُوا وَلَعَبْدٌ مُؤْمِنٌ خَيْرٌ مِنْ مُشْرِكٍ وَلَوْ أَعْجَبَكُمْ أُوْلَئِكَ يَدْعُونَ إِلَى النَّارِ وَاللَّهُ يَدْعُو إِلَى الْجَنَّةِ وَالْمَغْفِرَةِ بِإِذْنِهِ وَيُبَيِّنُ آيَاتِهِ لِلنَّاسِ لَعَلَّهُمْ يَتَذَكَّرُونَ

ترجمه : مشركو ښځو چې ترڅو ايمان نه وي قبول كړی نكاح ورسره مه كوئ او بېشكه مسلمانه وينزه له مشركې ښځې څخه غوره ده اګر كه هغه ستاسې خوښه وي او مشركانو چې ترڅو ايمان نه وي قبول كړی مسلمانانې په نكاح مه وركوئ بېشكه يو مشرك غلام تر هغه سړي غوره دی چې هغه مشرك وي اګر كه هغه ستاسې خوښ وي دا مشركان د اور لوري ته غوښتل كوي او الله ﷻ تاسې د جنت او مغفرت لوري ته غواړي په خپل اذن سره او الله ﷻ خپل آيتونه بيانوي د خلكو لپاره ښايي چې دوی ترينه پند واخلي .

⇦ د مجوسياتو ، د مشركاتو ، د بت پرستو او لمر ته د عبادت كونكو سره د مسلمان نكاح نه

کیږي په دوی کې اصیلې او وینزې دواړه پدې حکم کې شریکې دي (السراج الوهاج)

⇦ د اهل کتابو (یهودو نصاراوو) د ښځو سره مسلمان نکاح کولی شي که هغه د کفارو په ملک کې وي او که په اسلام ملک کې د ذمي په توګه اوسیږي.

الله ① فرمایي :

## سورة المائدة آية ٥

وَالْمُحْصَنَاتُ مِنَ الْمُؤْمِنَاتِ وَالْمُحْصَنَاتُ مِنَ الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ مِنْ قَبْلِكُمْ إِذَا آتَيْتُمُوهُنَّ أُجُورَهُنَّ مُحْصِنِينَ غَيْرَ مُسَافِحِينَ وَلا مُتَّخِذِي أَخْدَانٍ وَمَنْ يَكْفُرْ بِالْإِيمَانِ فَقَدْ حَبِطَ عَمَلُهُ وَهُوَ فِي الْآخِرَةِ مِنَ الْخَاسِرِينَ

ترجمه : او تاسې ته حلالې دي پاکدامنې مومنانې ښځې او پاکې ښځې چې د اهل کتابو څخه وي چې تاسې دهغوی مهرونه ورکړئ چې مطلب د پاکي طلب وي د شهوت پوره کول نه وي او دا ښځې په پټه توګه د دوستانو ساتونکې نه وي او هغه څوک چې د ایمان څخه وروسته کافر شي د هغه ټول کړي نېک عملونه ضائع شول او په آخرت کې به د تاوان کونکو کسانو له جملې څخه وي.

⇦ لکن د اهل کتاب په اړه هم غوره خبره داده چې د دوی سره نکاح ونه کول شي او د اهل

کتابو ذبح شوی مال ترڅو چې ضرورت نه وي نه
به خوړل کیږي (فتح القدیر)

⇦ که مسلمان سړي د کتابیې ښځې سره واده وکولو
هغه کولی شي د کلیسا د تللو نه یې منع کړي
او نور د اسلام کارونه وربانديې نشي لازم کولی
د مثال په توګه که هغه د حیض یا نفاس یا
جنابت نه وروسته غسل نه کوي نو په زور یې
وربانديې نشي کولی (السراج الوهاج)

ټول هغه کفار چې په اسماني دین او کوم اسماني
کتاب یا صحیفو بانديې یقین لري هغوی اهل کتاب
دي د هغوی نه مسلمان سړی واده کولی شي او د
هغوی د لاس د حلالې خوراک روا دی

الله ① فرمايي :

أُحِلَّ لَكُمُ الطَّيِّبَاتُ وَطَعَامُ الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ حِلٌّ لَكُمْ
وَطَعَامُكُمْ حِلٌّ لَهُمْ

ترجمه : او تاسې ته حلال دي پاک شیان او د هغه
کسانو خوراک چې هغوی ته کتاب ورکړل شوی دی
تاسې ته حلال دی او ستاسې طعام هغوی ته حلال دی
.

⇦ هغه ښځه چې په مور او پلار کې یې یو له اهل
کتابو څخه وي او بل مشرک وي مسلمان ورسره
واده کولی شي حکم یې د اهل کتابو دی
(البدائع)

⇦ که مسلمان د اهل کتاب د کومې ښځې سره واده
وکولو او هغه بیا مشرکه شوه نو د دوی په

مینځ کې موجوده نکاح ختمه شوه دوی به سره جدا کیږي او که نصرانیة (عیسایي) ښځه یې کړې وه بیا یهوده شوه او یا یې یهوده کړې وه بیا نصرانی شوه نو نکاح نه مسخ کیږي (الجوهرة النیرة)

⇦ هغه کس چې (نعوذ بالله) مرتد شي هغه اوس د مسلمانې، بلې مرتدې، یهودیې او نصرانیې یوې سره هم نکاح نشي کولی (المبسوط)

آتم ډول

# المحرمات بالملك

(دا هم د غلامانو او وینزو د وخت مسئله ده د بحث د تکمیل په موخه اشاره ورته کوم)

چې د سړي وینزه وي یا خو ټوله دده وي او یا دده له بل چا سره شریکه وي نو دی ورسره نکاح نشي کولی.

⇦ همدارنګه که د نکاح نه وروسته ملک راغلو نو نکاح له مینځه وړي دمثال په توګه د یوې ښځې خاوند غلام وو هغه اوس دې واخیستو نو نکاح له مینځه لاړه همدارنګه که یې د بل چا سره په شریکه واخیستو او ددې پکې یو څه برخه راغله نو د دوی په مینځ کې موجوده نکاح له مینځه ځي (البدائع)

همدارنګه چې ښځه له خپل غلام او یا له بل چا سره د شریک غلام سره واده کوي نو دا هم نه ده صحیح (فتاوی قاضي خان)

# المحرمات بالطلقات

په طلاقو سره حرامه هغه ښځه وي چې يو سړی يې په دريو طلاقونو سره طلاقه کړي ترڅو چې بل خاوند له هغې سره نکاح او بيا جماع نه وي کړې دې طلاقونکي خاوند ته نه روا کيږي او له ده سره يې نکاح نه کيږي الله ① فرمايي :

سورة البقرة آية ٢٣٠

فَإِنْ طَلَّقَهَا فَلا تَحِلُّ لَهُ مِنْ بَعْدُ حَتَّى تَنْكِحَ زَوْجاً غَيْرَهُ

ترجمه : او که (ددوهم طلاق نه وروسته) يې بيا طلاقه کړه بيا ده ته تر هغه وخته پورې نه ده روا چې بل خاوند ورسره جماع ونه کوي .



# د نکاح ارکان

د نکاح رکنونه (هغه شیان چې نکاح بغیر ددېنه نشي راتلی) درې دي .

۱. ښځه او خاوند چې په هر صورت او له هره پلوه د نکاح د کولو څخه مانع ونلري.

۲. ایجاب (هغه لفظ دی چې د یوه لوري نه بل لوري ته د نکاح کولو دعوت ورکوي که په هره ژبه وي او که په هر ډول الفاظو سره وي)

۳. قبول دا د ایجاب لپاره په مثبت طریقه سره جواب وي چې هرڅنګه وي او که په هره ژبه وي. (العنایة)



# د ایجاب او قبول الفاظ

⇦ د ایجاب او قبول الفاظ چې تر هرې زمانې پورې تړلې وي (که په تېره زمانه کې وي او که د مستقبل الفاظ وي صحیح دي ) النهر الفائق

⇦ د مثال په ډول که یو ماضي (د تیرې شوې زمانې) الفاظ استعمال کړل هلک ورته وویل : ته ما ځان ته په نکاح کړې جینۍ ورته وویل : زه تا قبلوم (د راتلونکې لفظ دی) بیا هم نکاح صحیح ده .

⇦ همدارنګه که له یو لوري نه د امر لفظ وو یعني ورته یې وویل ماته ځان په نکاح راکړه له بل لوري نه ورته وویل شول چې ته ما قبول کړې نو بیا هم نکاح شویده (البدائع)

⇦ هغه کس چې ګونګی وي د هغه قبول او یا ایجاب په اشاره سره صحیح کیږي (البدائع)

⇦ هغه کسان چې دواړه سره په یو ځای کې ناست وي یو ورته ایجاب او بل ورته قبول ولیکلو دا نکاح صحیح نه ده (النهر الفائق)

د ایجاب او قبول الفاظ په دوه ډوله دي .

١. صریح

دا هغه الفاظ دي چې په ښکاره سره مطلب د نکاح ترینه را معلومېدلی شي د مثال په طور خپله

لفظ د نکاح يا د واده لفظ يا په عربي کې د تزويج لفظ او يا په بله ژبه کې ددې معادل او مروج لفظ استعمال شي .

## ۲. کنايي

⇦ دا هغه الفاظ دي چې په عامه توګه د نکاح لپاره نه استعماليږي لکن اوس په ايجاب او قبول کې وکارول شي لکه د اخستلو خرڅولو الفاظ يا د صدقې او تحفې الفاظ او داسې نور .

⇦ د مثال په ډول که يوې زنانه سړي ته ووېل ما تاته خپل ځان تحفه کړو هغه ورته ووېل ما قبوله کړې نو چې د نکاح نور شرطونه (تفصيل يې لږ وروسته را روان دی) برابر وي نکاح وشوه (الهداية)

⇦ او که هغه ورته ووېل ما تاته خپل ځان تحفه کړو او ده ورته ووېل ما واخيستو نو پدې الفاظو سره نکاح نه صحيح کيږي (فتاوی قاضي خان)

⇦ که چا ووېل ما دا خپله لور ستاسې د خدمت لپاره تحفه کړه او هغه بل کس ورته ووېل ما قبوله کړه پدې سره هم نکاح نه صحيح کيږي( الذخيرة )

⇦ که يو سړي د ښځې نه د بد عملي مطالبه وکوله هغې ورته ووېل ما تاته ځان دربښلی دی او

سړي ورته وويل ما قبوله کړې يې پدې سره نکاح نه صحيح کيږي (فتاوى قاضي خان)

- که د صدقې او بيع الفاظ استعمال شي نکاح وربانډې صحيح کيږي (الهداية)
- همدارنګه که سړي ښځې ته وويل ته زما شوې هغې ورته وويل هو زه ستا شوم نو پدې سره هم نکاح کيږي (الذخيرة)
- که يې ورته وويل په سل روپۍ زما ښځه شه هغې ورته وويل صحيح ده کېږم نو نکاح وشوه او همدارنګه که يې ورته وويل زر روپۍ به درکړم ته زما ښځه شه هغې ورته وويل صحيح ده نو نکاح وشوه (الوجيز للردري)
- که ښځې ورته وويل ما ځان ستا ناوې کړو سړي ورته وويل صحيح ده نو پدې سره هم نکاح شوېده (فتاوى قاضي خان)



# د نکاح شرطونه

د نکاح شرطونه هغه شیان دي ترڅو چې دا موجود نه شي نو نکاح نشي کېدلی دا په لاندې ډول دي :

## ۱. عقل

د نکاح لپاره عقل شرط دی ددې امله د لیونې نکاح نه تړل کیږي .

## ۲. بلوغ

ماشوم نکاح نشي تړلی او که داسې ماشوم وي چې هغه په معاملاتو باندې پوهیږي دهغه نکاح هغه وخت صحیح ده چې ددې ماشوم ولي یې قبوله کړي. (البدائع)

## ۳. د نکاح وړ ځای .

نکاح به د داسې چا سره کیږي چې په شرعي لحاظ د هغه سره په نکاح کولو کې څه مشکل نه وي د مثال په توګه له محرماتو (تفصیل یې تېر شو) څخه نه وي او داسې نور.

## ٤. په خبرو پوهېدل.

نکاح به پداسې الفاظو سره وي چې دواړه طرفه ورباندې پوهیږي که په داسې الفاظو سره وتړل

شوه چې دواړو طرفونو نه آورېدل او یا په داسې ژبه خبرې روانې وې چې دواړه طرفونه په هغه ژبه نه پوهېدل نو دا عقد نه صحیح کیږي . (عالمګیري)

## ٥. ګواهان

ګواهان هم په نکاح کې هغه شی دي چې ددوی نه بغیر نکاح نه صحیح کیږي (بدائع)

هغه کسان چې په نکاح کې یې ګواهي صحیح کیږي په هغوی کې به څلور شرطونه وي:

١. اصیل به وي (غلام به نه وي)

٢. عاقل به وي (د لیوني ګواهي صحیح نه ده)

٣. بالغ به وي (د ماشوم ګواهي نه صحیح کیږي)

٤. مسلمان به وي (د مسلمان په نکاح کې د کفارو ګواهي نه کافي کیږي) (البحر الرائق)

⇦ که په اسلامي ملک کې کفار اوسیږي (ذمیین) که هغوی نکاح کوي نو د هغوی لپاره کفار ګواهان که د دوی سره په یو ملت وي او یا مختلف وي ګواهي یې صحیح کیږي. (البدائع)

⇦ که مسلمان له ذمي ښځې سره نکاح کوله نو بیا ذمیان هم د ګواه په ځای کفایت کوي که هغوی د ښځې سره په یو ډول کفار وي او که بدل وي . (السراج الوهاج)

⇦ په نکاح کې د ړانده او د فاسق ګواهي هم کفایت کوي (فتاوی قاضیخان)

⇦ په نکاح کې د هغه چا ګواهي هم کفایت کوي چې په نورو معاملو کې یې نه کوي د مثال په ډول که د چا دوه زامن وي له بلې ښځې نه چې اوس بل واده کوي نو چې په مجلس کې یې دا دوه زامن حاضر وي نو د هغوی په وړاندې هم د دوی نکاح صحیح کېدلی شي. (البدائع/ عالمګیري)

## ٦. د ګواهانو تعداد.

⇦ په نکاح کې د ګواهانو تعداد هم شرط دی ددې امله د یو ګواه په مخ کې نکاح نه ده صحیح لږ تر لږه دوه کسان به وي او یا به یو نارینه دوه ښځې وي (الهدایة)

⇦ بغیر د نارینه څخه که د ښځو تعداد هرڅو ډېر شي نکاح نه صحیح کیږي. (فتاوی قاضیخان)

⇦ په نکاح کې د ګواهانو په حق کې هم ضروري ده چې هغوی به د نکاح کونکو دواړو کسانو خبرې آوري نو که په خوا کې ورته دوه کسان ویده وو هغوی د نکاح کونکو د ایجاب او قبول خبرې وا نه وري نو نکاح نه ده صحیح همدارنګه که د دوو کسانو په مخ کې نکاح تړي چې هغوی دواړه کاڼه وي اواز نه آوري نکاح صحیح نه ده (فتاوی قاضي خان)

⇦ همدارنګه که د یو کس خبره یې آوریده او د بل خبره یې نه آوریده بیا هم نکاح نه ده صحیح بلکه دواړه به د دواړو خبرې آورې .

- که چېرته په دوو ګواهانو کې د یوه غوږونه جوړ وو هغه د دوی خبرې واورېدې بل کس په غوږو کوڼ وو هغه د دوی خبرې نه آورېدې چا ورته په غوږ کې چیغې ووهلې او د دوی خبرې یې ورته وکولې او یا لمړي ګواه چې غوږونه یې جوړ وو هغه ورته په غوږ کې چېغې ووهلې او د هغوی خبرې یې ورته وکولې نو بیا هم نکاح نه ده صحیح ترڅو دواړو ګواهانو په یو وخت کې نه وي آورېدلې. (فتاوی قاضي خان)
- همدارنګه ګواهان به ددې خبرو په مطلب پوهېږي او که د هغوی نه وغوښتل شي چې مطلب ددې خبرو څه دی هغوی به په دې قادر وي چې مطلب یې ووایي او کنه نو بیا هم نکاح صحیح نه ده (فتاوی قاضي خان)
- که چېرته ښځې په خپله ایجاب او قبول کولو او مخ یې په جامه کې پټ وو نو بیا هم نکاح صحیح ده او که د احتیاط له مخې ګواهانو ترې وغوښتل چې مخ لوڅ کړه مونږ کتل غواړو چې ته څوک یې؟ او یا که چېرته بل ځای کې مونږ ګواهي ورکوو مونږ څنګه پېژنو چې دا ګواهي مونږ د چا په حق کې ساتلې ده نو پدې صورت کې ګواهان کولی شي د ښځې مخ ته وګوري او ښځې ته هم د شریعت له نګاه نه هېڅ مانع نشته چې هغوی ته مخ ورښکاره کړي سره ددې چې هغوی اجنبي خلک دي. (محیط السرخسي)

⇦ او که ښځه په مجلس کې حاضره نه وه عقد یې وکیل کولو او د نکاح د تړلو په وخت کې ددې نوم او ددې د پلار نوم واخیستل شو چې ګواهانو پېژندل نو بیا هم نکاح صحیح ده. (محیط السرخسي)

⇦ او که ګواهانو په نامه باندې دا زنانه پېژندله او د نکاح په تړلو کې یې صرف ددې نوم واخیستو او ګواهان پدې پوه شول چې دا هماغه ده چې مونږ یې پېژنو نو پدې صورت کې بیا هم نکاح صحیح ده. (محیط السرخسي)

⇦ که په مجلس کې ښځه هم حاضره وه او پلار یې بل کس ته په نکاح ورکوله په مجلس کې د ګواه په توګه یو خپله پلار او یو بل سړی حاضر وو نو بیا هم نکاح صحیح ده او که دا په مجلس کې حاضره نه وه بیا نه ده صحیح (محیط السرخسي)

## ۷. د طرفینو (خاوند او ښځې) رضا

ترڅو چې دواړه طرفونه رضا نه وي په اجباري ډول سره نکاح نه صحیح کیږي او هېڅوک نشي کولی ښځه او یا خاوند د نکاح لپاره مجبور کړي (فتاوی قاضي خان)

## ۸. ایجاب او قبول په یو ځای کې

⇦ نکاح هغه وخت صحیح کیږي چې ایجاب او قبول دواړه په یوه مجلس کې وي او که چېرته ایجاب په یو مجلس کې وو او قبول په بل کې وو بیا هم نه صحیح کیږي او که چېرته د یو طرف نه د ایجاب لیک ولېږل شو او د بل لوري سره په مجلس کې ګواهان حاضر وو چې کله لیک هلته ورسېدو او هلته په لوړ آواز سره ولوستل شو ګواهانو لیک هم واورېدو او د هغه لوري قبول یې هم واورېدو نو بیا هم نکاح صحیح ده او که خط د دوی په وړاندې ونه لوستل شو بیا نه ده صحیح (البدائع)

⇦ او که ښځې د دوو کسانو ګواهانو په مخ کې وویل : فلاني ماته لیک را استولی دی هغه لما څخه غواړي چې له هغه سره واده وکوم زه ستاسې په وړاندې ددې ګواهي ورکوم چې ما ځان هغه ته په نکاح ورکړو نو پدې صورت کې بیا هم نکاح صحیح ده (فتح القدیر)

## ۹. په ایجاب او قبول کې به مخالفت نه وي.

ایجاب او قبول به په تمامه معنی یو د بل سره په یو شان وي د مثال په ډول په ایجاب کې که ورته وویل شول ما تاته دا خپله لور په نکاح درکړه د ۱۰۰۰ درهمو مهر په بدل کې هغه ورته وویل ستا لور مې قبوله ده لکن ۱۰۰۰ درهمه مهر

مې نه دی قبول پدې ایجاب او قبول سره نکاح نه ده شوې.
او که یې نکاح قبوله کړه او په مهر باندې چپ پاتې شو بیا هم نکاح شویده (عالمګیري)

## ۱۰. د نکاح نسبت به ټول ځان ته کیږي.

کله چې د نکاح عقد کیږي نو د نکاح نسبت به د منکوحې ټول ځان ته کوي او یا به داسې اندام ته کوي چې په هغه سره تعبیر د ټول ځان څخه کیږي لکه سر، غاړه یعنې داسې یې وویل ما تاته د خپلې لور سر په نکاح درکړو نو بیا هم صحیح ده لکه داسې چې ووایې ما تاته خپله لور په نکاح درکړه او که یې ورته وویل ما تاته خپله نیمه لور په نکاح درکړه او یا یې د هغې کوم اندام یاد کړو لکه لاس، پښه او داسې نور نو بیا نکاح نه ده صحیح (فتاوی قاضي خان)

## ۱۱. که ابهام وي نو تعین به کیږي.

⇦ په کوم ځای کې چې ابهام وي هغه به صفا کیږي او ترڅو چې هغه ابهام لرې نه شي نو نکاح صحیح نه ده د مثال په ډول که د یو سړي دوه لورانې وي هغه ووایي چې ماتاته خپله لور په نکاح درکړه نو ترڅو یې چې تعین نه وي کړی نکاح صحیح نه ده او که په دوو لورانو کې یې د یوې له چا سره نکاح شوې وه نو بیا

نکاح کیږي ځکه بیا د نکاح لپاره صرف یوه پاتې ده او هماغه پخپله تعین کیږي (النهر الفائق)

⇦ اوس چې پلار یې تعین کوي نو ددې لپاره مختلفې طریقې دي او مشهوره یې د هغې نوم اخستل دي او کله داسې هم کیږي چې د یوې جینۍ دوه نومونه وي نو هغه نوم به یې یاد کړي چې کوم یې ډیر مشهور وي او که دواړه سره یو ځای یاد کړي دا غوره ده (الظهیریة)

⇦ که د یو سړي یوه لور وه د مثال په ډول نبیله نوم یې وو هغه بل کس ته ویل چې ما تاته خپله لور په نکاح درکړه چې نائله نوم یې دی او پدې وخت کې جینۍ حاضره نه وه او هغې ته اشاره نه وه شوې نو دا نکاح صحیح نه ده او که یې صرف دومره وویل چې ما تاته خپله لور په نکاح درکړه او بالکل نوم یې وانه خیستو بیا نکاح صحیح ده. (المحیط)

⇦ که د یو سړي دوه لورانې وې یوه نبیله نومیده مشره وه او بله نائله نومیده کشره وه ده ورته نبیله ورکول غوښتل او خبره تری غلطه شوه ورته یې وویل زه تاته خپله لور نائله په نکاح درکوم هغه ورځخه قبوله کړه نو د نائلې (کشرې) نکاح وشوه اګر که د پلار مطلب دا نه وو چې کشره د هغه ته په نکاح ورکړي او که یې ورته وویل چې زه تاته خپله مشره لور نائله په نکاح درکوم نو پدې خبره

نکاح بالکل نه صحیح کیږي ځکه دلته دواړه خبرې سره ټکر شوې دي مشره نبیله نومي او نائله د کشرې لور نوم دی. (الظهیریة)

⇦ همدارنګه که یو سړي وویل چې خپله نائله لور مې د علي زوی ته په نکاح ورکړه علی وویل ما د خپل زوی لپاره قبوله کړه او د علي دوه زامن وو چې تعین پکې ونشو نو دا عقد صحیح نه دی او که د علي یو زوی وو بیا صحیح دی او یا که د جینی پلار وویل چې ما خپله لور نائله د علي مشر زوی یا یې دهغه نوم یاد کړو (خان) ته په نکاح ورکړه او هغه وویل ما د خپل زوی لپاره قبوله کړه بیا هم نکاح صحیح ده. (عالمګیري)

۱۲. مهر به وي.

په نکاح کې به مهر تعین کیږي الله ① فرمایي:

سورة النساء آية ٤

وَآتُواْ النَّسَاء صَدُقَاتِهِنَّ نِحْلَةً

ترجمه: او مېرمنو ته د هغوی مهرونه په خوشحالی سره ورکړئ



# په نکاح کې ولي

ولي په څلورو شیانو باندې ثابتیږي .

١. خپلولي

٢. ولاء (چې غلام چا ازاد کړی وي)

٣. امامة

٤. ملک

تر هرچا څخه نیږدې ولي د ښځې لپاره دهغې زوی دی بیا یې لمسی دی که هرڅو ترې ښکته وي بیا یې پلار دی بیا یې نیکه دی که هرڅو پورته وي (المحیط)

⇦ نو ددې امله چې یوه ښځه وي او دهغې دماغي توازن برابر نه وي یو یې زوی وي او بل یې پلار وي او یا یې نیکه وي نو ددې ولایت او تصرف یې د زوی په لاس کې دی (السراج الوهاج)

⇦ امام محمد رحمه الله پدې ځای کې فرمایي چې تصرف او ولایت د پلار په لاس کې دی لکن غوره خبره داده چې د ښځې پلار د ښځې زوی ته حکم وکوي چې دا ښځه چاته په نکاح ورکړي چې بالاتفاق خبره جوړه شي (شرح الطحاوي)

⇦ بیا یې ولایت او تصرف د ورور په لاس کې دی چې ددې سکه (د مور او پلار دواړو څخه) وي بیا د هغه ورور حق دی چې ددې د پلار نه وي .

⇦ بیا د هغه ورور زوی یې ولي دی چې ددې سکه ورور وي (د مور او پلار نه) بیا د هغه ورور اولاد ددې د ولایت حق لري چې ددې له پلار نه وي او دا اولادونه چې هرڅو ښکته وي .

⇦ بیا یې هغه تره ولي او متصرف دی چې ددې د پلار سکه ورور وي( ددې د پلار سره په مور او پلار کې شریک وي) بیا هغه تره چې ددې د پلار سره په پلار کې شریک وي که دا کسان نه وو بیا یې د هغه تره زوی چې ددې د پلار سره په مور او پلار کې شرک وو او بیا د هغه تره زوی چې ددې د پلاره سره په پلار کې شریک وو دا اولادونه بیا ددې ښځې ولایت کولی شي که هرڅو ښکته وي .

⇦ که دا کسان هم موجود نه وو بیا یې د پلار تره تصرف کولی شي په هماغه زاړه ترتیب اول بالکل سکه او بیا هغه چې ددې د پلار د پلار له اړخه تره وي که دا هم نه وي بیا په همدې ترتیب د نیکه تره که هغوی نه وي بیا په همدې پورتني ترتیب د سکه او ناسکه د هغوی اولادونه .

⇦ دا ټول پورتني کسان دا په ذهني توګه معذوره ښځه او یا هلک او یا تر واړه ماشومان نارینه او ښځینه د نکاح لپاره مجبوره کولی شي (البحر الرائق)

⇦ که دا کسان د چا موجود نه وو نو هغه کس یې بیا ولي دی چې چا ازاد کړی وي (که دا کس

مخکې غلام وو) او که ازادونکی یې اوس موجود نه وو نو چې دهغه څومره خپلوان دي هغوی بیا ټول په پورتني ترتیب باندې پدې معذور او یا ماشوم کې تصرف کولی شي (التبیین)

- او که دا پورتني کسان هیڅوک هم دیو ذهني معذور لپاره نه وو نو بیا چې څوک دوی ته په خپلولي کې نیږدي وي دا معذور مړ شي هغوی ترینه میراث وړلی شي اوس هغوی ددوی په حق کې تصرف کولی شي د امام ابي حنیفه رحمه الله په نظر بیا احق بالتصرف یې مور او بیا لور ده بیا یې لمسی ده (د لور لور) بیا یې د لمسي لور ده بیا یې د لور لمسی ده بیا یې خور ده چې د مور او پلار نه یې وي بیا یې هغه خور چې یوازې د پلار نه یې وي بیا هغه چې یوازې د مور نه یې وي او بیا ددې خلکو اولادونه (فتاوی قاضي خان)
- د دوی نه وروسته بیا عمه ګانې او خاله ګانې او د هغوی اولادونه د دوی ولي کېدلی شي (فتاوی قاضي خان)
- او که دا کسان نه وي نو بیا ددې هلک او یا جینۍ متصرف او ولي د وخت قاضي دی او د ملک بادشاه دی هغوی به په سمه توګه د دوی انتظام وکوي او په سمه توګه به ددې نکاح په مناسب ځای کې د کولو کوښښ وکوي .
- که دا ماشومه قاضي بیا ځان ته نکاح کوله نو دا نکاح یې نه کیږي ځکه پداسې ځای کې د خپل

ځان په حق کې قاضي بیا یو عام رعیت دی او چې ځان ته یې نکاح کوي دی ولي پاتې نشو نو دا د ماشومې نکاح ده بغیر د ولي نه او دا نه صحیح کیږي (عالمګیري)

- ⇦ او که د تره زوی د یوې ماشومې متصرف پاتې شو هغه دا خپله د تره لور ځان ته په نکاح کولی شي (الحاوي)
- ⇦ همدارنګه که قاضي غواړي چې دا ماشومه چې بې ولي پاتې شویده خپل زوی ته په نکاح کړي دا نشي کولی او که بل څوک یې ولي پاتې شو کوم کسان چې لږ وړاندې تېر شول نو هغوی کولی شي خپل زوی ته دا بې سر پرسته ماشومه په نکاح کړي.
- ⇦ د کافر، ماشوم او لیوني ولایت په مسلمان ماشوم او ماشومه کې د قبول وړ نه دی . (الحاوي)
- ⇦ همدارنګه په کافر ماشوم او کافره ماشومه باندې د مسلمان ولایت هم د قبول وړنه دی (المضمرات)
- ⇦ د کافر سړي ولایت د کافر ماشوم او یا ماشومې په حق کې قبلیږي (التبیین)
- ⇦ هغه څوک چې مرتد شي (العیاذبالله) بیا د هغه ولایت په هېڅا باندې هم د قبول وړ نه وي نه په مسلم او نه په کافر او نه بل مرتد ماشوم باندې (البدائع)

- که د کوم ماشوم دوه وليان وي او دواړه په يوه مرتبه کې وي نو دواړه تصرف کولی شي د مثال په توګه دوه ورونه يې وي نو چې هر يو واده ورته وکوي صحيح ده هېڅ فرق نه کوي که هغه بل دا عقد قبول او که يې رد کړي (فتاوی قاضي خان)
- که ماشوم او ماشومې ته پلار او يا نيکه واده وکوي دوی چې کله بالغان شي د قبول او د رد اختيار ورسره نشته او که بل ولي يې ورته وکوي کله چې دوی بالغان شي نو د قبول او يا رد اختيار لري (الهداية)
- که دا ماشوم او يا ماشومه ځان ته پخپله واده وکوي او ولي يې هم اجازه ورته وکوي نو دا نکاح اوس صحيح ده لکن دا ماشوم چې کله بلوغ ته ورسيږي بيا يې هم د قبول او رد اختيار شته (محيط السرخسي)

# په نکاح کې وکالت

⇦ په نکاح کې وکیل نیول صحیح دي اګر که د وکالت ګواهان د نکاح په مجلس کې حاضر نه وي هم نکاح کېدلی شي (التتارخانیة)

⇦ که یوې ښځې یو سړی وکیل کړو او ورته یې وویل چاته د چې خوښه وي ما په نکاح ورکړه هغه یې که اوس ځان ته په نکاح کوي نو نه ده صحیح (عالمګیري)

⇦ همدارنګه یو سړي ښځه وکیله کړه چې ماته څوک وکوه هغې خپل ځان ورته په نکاح کول غوښتل نو دا نه ده صحیح (محیط السرخسي)

⇦ که چا یو کس وکیل کړو چې ورشه فلانی ښځه (معینه یې ورته یاده کړه) ماته په بدل د دومره روپیو مهر کې په نکاح کړه هغه ورغلو خپل ځان ته یې په هماغه مهر باندې نکاح کړه نکاح د وکیل سره صحیح ده (المحیط)

⇦ یوې ښځې یو سړی وکیل کړو چې زما د کارونو انتظام کوه هغه وکیل دا ښځه ځان ته په نکاح کړه کله چې ښځه خبره شوه هغې وویل دا ما ددې لپاره وکیل کړی وو چې صرف زما د تجارت د کارونو انتظام وکوي نو دا نکاح نه ده صحیح (عالمګیري)

⇦ که یوې ښځې یو سړی وکیل کړو چې ما خپل ځان ته په نکاح کړه هغه لاړو د ګواهانو په

وړاندې يې دا ځان ته په نکاح کړه نو نكاح صحيح ده (عالمګيري)

⇦ يو كس بل وكيل كړو چې ماته واده وكوه هغه لاړو خپله ماشومه لور او يا ماشومه وريره او يا بله داسې ماشومه چې دی يې ولي وو د خپل ولايت په قوت سره ده ته په نكاح كړه نكاح نه ده صحيح او كه خپل بالغه لور يې د لور په رضا نكاح كړه بيا نكاح صحيح ده همدارنګه كه يې بالغه خور ورته په نكاح كړه نو صحيح ده (المحيط)

⇦ همدارنګه كه يوې ښځې څوک وكيل كړو چې ما چاته په نكاح كړه هغه خپل زوی او خپل پلار ته په نكاح كړه دا نكاح د امام ابي حنيفه رحمه الله په مذهب نه ده صحيح او كه زوی يې ماشوم وو نو بيا بالاتفاق نه ده صحيح (فتاوی قاضي خان)

⇦ كه يوې ښځې څوک وكيل كړل چې ما چاته وركړه هغې داسې چاته په نكاح كړه چې هغه ړوند وو، شل وو، كم عقل وو، ماشوم وو، خصي وو، په جنسي عمل نه وو قادر نو نكاح صحيح ده همدارنګه كه سړي څوک وكيل كړل چې ده ته ښځه په نكاح كړي هغه ورته ړنده ، شله ، ليونی ، اصيله يا وينزه، مسلمانه يا اهل كتابية او يا وړوكې ماشومه په نكاح كړه په ټولو صورتونو كې نكاح صحيح ده .

⇦ که یې وکیل ته وویل چې ماته سپینه ښځه په نکاح کړه هغه ورته توره په نکاح کړه او یا یې ورته وویل چې ماته توره ښځه په نکاح کړه هغه ورته سپینه په نکاح کړه نو نکاح صحیح نه ده او که یې ورته ویلي وو چې ماته ړنده په نکاح کړه هغه ورته جوړه په نکاح کړه نکاح صحیح ده (عالمګیري)

⇦ که چا وکیل ته وویل ماته یوه ښځه په نکاح کړه هغه ورته دوې په یوه عقد کې په نکاح کړې نو یوه هم په ده لازمه نه ده چې قبوله یې کړي او که یې وویل چې صحیح ده دواړه صحیح دي نو بیا یې دواړه ښځې دي او که یې یوه قبوله او بله رد کړه نو دده اختیار دی هره یې چې قبوله کړه هغه یې ښځه ده (عالمګیري)

⇦ او که یې دواړه په بېل بېل عقد کې ورته په نکاح کړې نو اوله یې دده ښځه ده او دوهمه موقوفه ده که یې اجازه وکوله نو دده ښځه ده او که یې ونه کوله نو بیا وربانديې لازمه نه ده . (العیني شرح الهدایة)

⇦ که چا څوک وکیل کړل چې فلانۍ ښځه ماته نکاح کړه هغه دا هم ورته په نکاح کړه او ورسره یې یوه بله هم ورته په نکاح کړه نو هغه چې ده یاده کړې وه هغه په ده لازمه ده او دوهمه بیا لکه په مخکني صورت کې تر اجازې پورې موقوفه ده . (العیني شرح الهدایة)

⇦ که يې وکيل کړو چې ده ته په يوه عقد کې دوه ښځې په نکاح کړي او ده ورته يوه په نکاح کړه نو نکاح صحيح ده او که يې ورته ويلي وو چې د دوو نه به ماته بغير نکاح نه کوې بيا ده ورته يوه په نکاح کړه نو پدې صورت کې دا يوه وربانديې لازمه نه ده .

⇦ که يې وکيل ته وويل چې زما په قوم کې به ماته ښځه په نکاح کړې او ده ورته په بل قوم کې په نکاح کړه نو په وکيل کونکي لازمه نه ده چې خامخا د دا ښځه قبوله کړي (الخلاصة)

⇦ که يې وکيل ته وويل چې دا فلانۍ ښځه ماته نکاح کړه هغه ورته په نکاح کړه لکن مهر يې تر عام مهر نه زيات وو که پداسې اندازه زيات وو چې انسان ته پدې اندازه باندې دوکه ورکول کېدلی شي نو بيا دا د وکيل کونکي ښځه ده او که دومره زيات مهر يې ورسره تعين کړی وو چې انسان تر دومره حد پورې دوکه نه خوري نو بيا وربانديې لازمه نه ده . (المحيط)

⇦ که يې وکيل ته وويل چې دا فلانۍ ښځه ماته د زرو روپيو مهر په بدل کې په نکاح کړه هغه ورته د دوو زرو مهر په بدل کې په نکاح کړه په وکيل کونکي لازمه نه ده چې قبوله يې کړي او که وکيل وويل چې زه به زر روپۍ له خپله جيبه ورکړم لکن دا نکاح قبوله کړئ بيا هم وربانديې لازمه نه ده (عالمګيري)

⇦ که یې ورته وویل چې دا فلانۍ ښځه ماته په زر روپیو مهر کې نکاح کړه هغه ورته په دوه زره کې نکاح کړه لکن نکاح کونکی پرې خبر نه شو تردې چې هغه ورسره جماع وکوله وروسته خبر شو بیا هم دده اختیار شته چې دا نکاح رد کړي ښځه به ترې جدا کیږي او دی به هغې ته په مهر مثل (چې څومره مهر د ښځې په کورنۍ کې رواج وي) او یا ۱۰۰۰ روپیو کې چې هر یو کم وي هغه به ورکوي او که یې نکاح قبوله کړه نو چې په هرڅو باندې وکیل ورته نکاح تړلې وه هماغه وربانذې لازم دي .

⇦ که ښځې خپل وکیل ته وویل چې ما د ۲۰۰۰ روپیو مهر په بدل کې په نکاح ورکړه وکیل هغه د ۱۰۰۰ په بدل کې چاته په نکاح کړه دا په خپل مهر خبره نه وه هغه کس لدې سره جماع وکوله نو د جماع نه وروسته هم ددې اختیار شته چې دا نکاح رد کړي او یا یې قبوله کړي نو که یې قبوله کړي په همدې ۱۰۰۰ درهمه به رضا کیږي او که یې رد کړي ددې مهر مثل (هغه مهر چې ددې په کورنۍ کې رواج وي) په خاوند لازم دی چې هرڅومره وي. (خزانة المفتین)

⇦ که یې وکیل ته وویل چې ماته دا فلانۍ د ۱۰۰۰ روپیو په بدل کې په نکاح کړه وکیل چې ورغلو هغه ښځه په ۱۰۰۰ روپیو رضا نه شوه بیا وکیل له خپل لوري نه یوه جوړه ورسره زیاته کړه هغه رضا شوه او نکاح یې وتړله وکیل کونکی

چې خبر شي اوس هم اختيار لري چې يا دا نکاح قبوله کړي او يا يې رد کړي ځکه وکيل که ددې جامې (جوړې) د ورکولو نه انکار وکوي تاوان وربانديې نه راځي تاوان بيا هم په وکيل کونکي خاوند راځي ځکه وکيل خو متبرع (احسان کونکی دی) په احسان کونکي تاوان نه راځي.

# مهر

- نکاح د مهر نه بغير نه کيږي او د مهر لږ تر لږه اندازه لس دراهم دي که سکه کړل شوي وي او که نه وي (التبيين)
- د مهر زياته اندازه محدوده او معلومه نه ده د جينۍ او يا د هغې د وکيل خوښه ده چې هغه ځومره مهر غواړي او سړي ته اختيار دی چې يا د هغې په ويل شوي مهر هغه نکاح کوي او که يې پريږدي د مثال په ډول که يوه جينۍ او يا د هغې وکيل په اوس وخت کې سل لکه روپۍ مهر غواړي نو هغه سړی چې ددې جينۍ نکاح کول غواړي دوه ا ختياره لري يا به يې په همدې مهر نکاح کوي او يا به يې پريږدي د مهر زياته اندازه تعين شوې نه ده .

او تر لسو درهمونو څخه به مهر کم نه وي.

- او چې لس درهمه موجود نه وي نو دهغې قيمت به ورکول کيږي او يا که بل شی په مهر کې

ورکوي نو لږ تر لږه د لسو درهمونو قیمت ته به رسیږي او لس درهمه اوس څومره کیږي؟

⇦ ددې خبرې ځواب ځکه د اختلافونو څخه ډک دی چې د رسول الله ﷺ په وخت کې چې کوم درهم استعمالېدو دهغه بعینه خاصه اندازه نه ده معلومه هغه یا د وربشو او یا د نورو دانو په تول سره معلوم کړل شوی دی او هغه چې په دقیق وزن سره وزن کیږي نو زیات فرق وي پکې لکه د مثال په توګه ضروري نه ده چې هرې لس د وربشې دانې دې د نورو لسو سره برابرې شي پدې اړه چې ما کومه څېړنه وکوله ماته دری خبرې ډېرې مخې ته راغلې .

١. یو درهم 2.975 (دوه اعشاریه نه سوه پنځه اویا) ګرامه سره زر کیږي نو دا چې په لسو کې ضرب کړو ددېنه 29.75 (نه ویشت اعشاریة پنځه اویا) ګرامه سره زر جوړوي

٢. یو درهم 2.457 ګرامه سره زر کیږي او دا چې په لسو کې ضرب کړو ددینه 24.57 ګرامه سره زر جوړیږي

٣. یو درهم 3.12 ګرامه سره زر کیږي نو دا چې په لسو کې ضرب کړو ددېنه 21.02 ګرامه سره زر جوړوي.

⇦ په هر صورت هروخت چې زمونږ د مهر لږ تر لږه اندازه په کار وي ددومره خالصو سرو زور

قیمت چې معلوم کړو مهر باید تر هغه څخه کم نه وي.

- که په جامه یا بل شي باندې نکاح کیږي نو د نکاح د تړلو په ورځ یې قېمت معتبر دی چې پدې ورځ باندې د لسو درهمو قېمت ولري په مهر کې یې ورکول صحیح دي او په کومه ورځ یې چې ښځې ته حواله کول که بیا یې قېمت تر لسو درهمو څخه ښکته شوی وو د خاوند نه د تاوان غوښتلو حق نه لري. (عالمګیري)
- او که چېرته دا جامه د نکاح د تړلو او دېته ته ددې جامې د ورکولو په مینځ وخت کې د کوم جز په ورکېدلو یا سوزېدلو سره ددې قېمت ښکته شي نو د ورکړې په وخت کې د ښځې اختیار دی که دا همدا ناقصه جامه قبلوي او که لس درهمه غواړي .
- که په مهر کې یې داسی شی تعین کړل چې هغه مهر نشوای صحیح کېدلی نو بیا مهر مثل لازمیږي (مهر مثل هغه مهر وي چې د ښځې په کورنی کې ددې په ډول د نورو ښځو څومره مهر رواج وي) د مثال په توګه یو چا ښځه نکاح کړه او د مهر په ځای یې دا ورسره شرط کړه چې زه به تاته درس وایم ، تاته به قران در وښیم نو پدې صورت کې به مهر مثل ورکوي. (فتاوی قاضي خان)
- که په نکاح کې داسې مهر تعین شو چې هغه تر لسو درهمونو څخه کم وو نو دومره څه شی به

ورکوي چې لس درهمه پوره شي او که داسې څه یې تعین کړي وو چې د هغې قیمت لسو درهمونو ته رسېدو او یا ورڅخه زیات وو نو بیا یې همدا مهر دی .

- همدارنګه که یو مسلمان سړي د مسلمانې ښځې سره نکاح کوله او په مهر کې یې ورته خنزیر یا شراب تعین کړل نو ددې ورکول وربانديې لازم نه دي ددې په ځای به مهر مثل ورکوي (عالمګیري)
- همدارنګه که چا ښځه نکاح کړه او د مهر په ځای یې دا وربانديې لازم کړل چې ته به پخوانۍ ښځه پرېږدې او یا به فلانی سړی قتل کوې او یا به ما حج ته بیایې دا کارونه په خاوند لازم نه دي خاوند به یې مهر مثل ورکوي (فتاوی قاضي خان)
- که چا د ښځې سره نکاح وکوله او په مهر کې یې ورته یو کور یاد کړو یا زمکه او یا موټر بیا وروسته ښکاره شوه چې هغه کور ، زمکه او موټر خو دده نه وو پردي وو اوس هم نکاح شوېده خاوند به هماغه نومول شوي شیان له مالک نه اخلي او ښځې ته به یې ورکوي او که هغه شیان یې مالک نه خرڅول نو ښځې ته به دهغه یاد کړل شوي شي قیمت ورکوي (المحیط)
- که یوه ښځه یې نکاح کړه او په مهر کې یې داسی څه شی ورته یادکړل چې اوس موجود نه دي د مثال په ډول په مهر کې یې د راتلونکي کال

د زمکې فصل یا د باغ حاصل تعین کړل نو دا مهر نه صحیح کیږي نکاح صحیح ده ښځې ته به مهر مثل ورکول کیږي همدارنګه که یې ورته وویل څه چې زما د اوښ په ګېډه کې دي که جونګی وي او یا جونګی او یا څه چې زما د مېږو په ګېډو کې دي پدې ټولو صورتونو کې به مهر مثل لازمیږي (المحیط)



# د مهر ټینګونکي شیان

⇦ مهر په دریو شیانو سره موکد کیږي او ټینګیږي یعني چې دا دری کارونه وشي نو مهر په خاوند باندې وواښت .

١. جماع

٢. خلوت صحیحة (چې ښځه او خاوند یوازې په یوازې سره بغیر د حسي ، طبعي او شرعي موانعو د جماع نه سره په یو ځای کیني (فتاوی قاضي خان) اګر که جماع هم ونه کوي نو مهر وواښت)

٣. په ښځه او خاوند کې د یو مرګ .

کله چې دا دری کارونه وشي نو بیا د مهر نه هېڅ نشي کمېدلی او ځومره چې وي ورکول یې لازم شي ترڅو چې ښځې یا دهغې وارثانو (که هغه مړه وه) ورته ټول او یا څه برخه بښلې نه وي .
(البدائع)

# متعة

⇦ که چا نکاح وکوله او مهر یې تعین کړو بیا د واده (د جماع نه وړاندې) یې دا ښځه پرېښودل غوښتل نو نیم مهربه ورکوي .

⇦ که چا نکاح وکوله او مهر یې بالکل یاد نه کړو او یا یې دا شرط کړه چې مهر به یې نه وي پدې صورت کې هم مهر مثل واجب دی او پدې صورت کې یې که د جماع او یا خلوت صحیحه څخه وړاندې طلاقه کړه نو دېته به متعة ورکوي .

⇦ همدارنګه په هر عقد کې چې مهر مثل لازم شي نو که تر جماع وړاندې طلاق ورکړل شي نو متعه ورکول لازم شي (عالمګیري)

الله ① فرمايي :

## سورة البقرة آية ٢٣٦

لَّا جُنَاحَ عَلَيۡكُمۡ إِن طَلَّقۡتُمُ ٱلنِّسَآءَ مَا لَمۡ تَمَسُّوهُنَّ أَوۡ تَفۡرِضُواْ لَهُنَّ فَرِيضَةٗۚ وَمَتِّعُوهُنَّ عَلَى ٱلۡمُوسِعِ قَدَرُهُۥ وَعَلَى ٱلۡمُقۡتِرِ قَدَرُهُۥ مَتَٰعَۢا بِٱلۡمَعۡرُوفِۖ حَقًّا عَلَى ٱلۡمُحۡسِنِينَ ﴿٢٣٦﴾

ترجمه : په تاسې باندې څه ګناه نشته که تاسې ښځې مخکې ددې طلاقوئ چې هغې ته ور نېږدې شئ او

یا هغې ته مهر معلوم کړئ نو بیا به هغوی ته یوڅۀ مصرف وکوئ (څه شی ورته ورکړئ) مالدار یې دې د خپلې مالداري په اندازه ورکړي او غریب یې دې د خپل غربت په اندازه دا متعه ورکول په ښه توګه په نیکانو باندې یو ډول حق دی .

متعه څه شی وي؟

⇦ یوه جوړه سر تر پښو جامه وي ضروري نه ده چې باید ډېره اعلی وي او ډېره ادنی باید هم نه وي (المحیط)

⇦ او دا د ښځې د حوصلې لوړولو او دهغې د زړه د ښه کولو په موخه ورکول کیږي ځکه هغه به په طلاق باندې دردېدلې وي نو پدې سره به یو څه خوشحاله شي .

⇦ که چېرته د خاوند سره جامه نه وه او هغه ورته د جامې قیمت نقد ورکول غوښتل ښځه اختیار نلري چې انکار وکوي هغه به یې په اخستلو مجبوره کول کیږي (البدائع)

⇦ متعة به دومره قیمته نه اخستله کیږي چې د مهر مثل د نیم نه یې قیمت زیات شي او دومره به ارزانه هم نه وي چې تر ٥ درهمو کمه شي .

⇦ لکه په پورتني آیت کې چې شکاره شوېده په متعه کې به د سړي حالت ته کتل کیږي که مالدار وو نو عالي که متوسط وو نو متوسطه او که غریب وو نو ادنی متعه به ورکوي (الهدایة)

- که پداسې صورت کې چې مهر يې تعين کړی وي او يا يې نه وي تعين کړی خاوند تر دخول او يو ځای والي وړاندې په حق ورسيږي او يا د کومې وجې له امله قاضي د دوی په مينځ کې جدايي راولي متعه نشته (المحيط)
- زمونږ په مذهب کې متعه په درې ډوله ده

١. واجبه

لکه په پورتنيو صورتونو کې چې تېره شوه چې نکاح وشي مهر تعين نشي او طلاقه کړل شي دليل يې هم پورتنی آيت تېر شو.

٢. مستحبة

د هغې ښځې لپاره ده چې نکاح يې تړل شوې وي او مهر ورته نه وي ياد کړل شوی او تر جماع وروسته طلاقه کړله شي .

۳. نه مستحبه او نه واجبه

د هغې ښځې لپاره ده چې مهر ورته تعین کړل شوی وي او تر جماع وروسته طلاقه کړل شي

## واده کونکو ته دعا

هغه کسان چې واده یې کړی وي هغوی ته د مبارکي ورکولو په وخت یوه دعا سنت ده د حضرت ابي هریره ❼ نه روایت دی هغه فرمایي کله به چې رسول الله ☸ هغه چا ته مبارکي ورکوله چې نوی واده به یې کړی وو نو ورته به یې ویل :

**بَارَكَ اللَّهُ لَكَ وَبَارَكَ عَلَيْكَ وَجَمَعَ بَيْنَكُمَا فِي الْخَيْرِ**

**ترجمه** : الله ① د تاته پکې برکت واچوي الله ① د په تا باندې برکت نازل کړي او الله ① د تاسې په خیر کې سره جمع کړي .

# ولـيمه

ولـيمه د خاوند او مېرمن تر يو ځاى كېدلو وروسته كول سنت دي د حضرت فاطمې رضى الله عنها ولـيمه رسول الله ﷺ همداسې كړې وه .

رسول الله ﷺ په خپله مېرمن حضرت زينب باندې ولـيمه جوړه كړه ټولو خلكو ته يې خوراك وركړو حضرت انس ❼ فرمايي مسلمانان يې په ډوډۍ او غوښه باندې ماړه كړل .

د حضرت انس بن مالك ❼ نه روايت دى چې رسول الله ﷺ په يوه مېرمن باندې واده جوړ كړو بيا يې زه ولېږلم ما ورته خلک را وغوښتل .

په ولـيمه كې سنت ده چې نيكان خلك ورته را وغوښتل شي رسول الله ﷺ فرمايي :

**لَا تُصَاحِبْ إِلَّا مُؤْمِنًا وَلَا يَأْكُلْ طَعَامَكَ إِلَّا تَقِيٌّ (رواه مسلم)**

يعني : ملگري مه كوه مگر د مومن سره او ستا خوراک د صرف متقيان وخوري .

كه يې په وس كې وه په ولـيمه كې پسه (گډ) او يا تر دې زيات شى حلالول سنت دي رسول الله ﷺ فرمايل : **أَوْلِمْ وَلَوْ بِشَاةٍ** (يعني ولـيمه وكوه اگر كه په يو پسه سره هم وي (رواه مسلم)

چې كله حالت ښه نه وي انسان په مالي لحاظ كمزورى وي نو چې په هرشي باندې يې وس بر وي

نو هغه د په ولیمه کې ورکړي حضرت انس بن مالک❼ فرمایي :

رسول الله ☸ د مدینې او خیبر په مینځ کې درې ورځې پاتې شو هلته یې په صفیة بنت حیی باند واده جوړ کړو ټول مسلمانان یې ولیمې ته را وغوښتل په ولیمه که نه ډوډی وه او نه پکې غوښه وه د څرمنې څخه جوړ لوښی یې را وغوښتلو په هغې کې یې خورما شودې او غوړي واچول بس همدا ولیمه وه (اخرجه البیهقي)

⇦ د ولیمې په تیارولو کې د واده د څښتن سره مرسته کول هم سنت دي د حضرت انس ❼ په یو حدیث کې روایت دی چې کله رسول الله ☸ په حضرت ام المومنین صفیة باندې واده جوړ کړی وو (د ولیمې ډوډی یې ورکوله) نو رسول الله ☸ وویل له چا سره چې څه شی وي را د وړي بیا دسترخوان خپور کړل شو یوه سړي به شودې راوړې یوه سړي به خورما راوړي او یوه سړي به غوړي راوړل په شریکه ترینه حلوا جوړه کړل شوه دا ولیمه وه . (النسایي)

چې صرف مالدار خلک ولیمې ته را وغوښتل شي دا ناروا ده رسول الله ☸ فرمایي :

**شَرُّ الطَّعَامِ طَعَامُ الْوَلِيمَةِ يُمْنَعُهَا مَنْ يَأْتِيهَا وَيُدْعَى إِلَيْهَا مَنْ يَأْبَاهَا وَمَنْ لَمْ يُجِبِ الدَّعْوَةَ فَقَدْ عَصَى اللَّهَ وَرَسُولَهُ (صحيح البخاري)**

ترجمه : بد خوراک هغه د وليمې خوراک دی هغه څوک چې ورته راځي هغه ترينه منع کول کيږي او هغه کسان ورته را غوښتل کيږي چې هغوی ورته نه راځي او څوک چې وغوښتل شي او ورنشي (غوښتنه ونه مني) هغه د الله ① او د الله ① د رسول نا فرماني وکوله .

⇦ کله چې څوک وليمې ته وغوښتل شي ورتلل لازم دي لکه په پورتني حديث کې چې تېر شول څوک چې وغوښتل شي او لاړ نشي د الله ① او د هغه د رسول نا فرماني يې وکوله .

که څوک و غوښتل شي دده روژه وي نو روژه دې وخوري حضرت ابي سعيد الخدري ❼ فرمايي : ما رسول الله ☸ ته خوراک تيار کړو نو دی او صحابه راغلل کله چې خوراک کېښودل شو يو کس وويل زما روژه ده رسول الله ☸ ورته وفرمايل : ستاسې ورور تاسې را وغوښتي ياست او تاسې ته يې تکليف کړی دی بيا يې وويل روژه د وخوره او ددې په ځای يوه بله ورځ روژه ونيسه چې خوښه د شوه . (متفق عليه)

.

# د متعددو ښځو په مینځ کې تقسیم

هغه کس چې تر یوه زیاتې ښځې ولري د دوی په مینځ کې عدل او برابري ضروري ده جامه خوراک هستوګنځی او د شپې تېرول به ټولو ته په یو شان ورکوي او یوه به پر بله باندې نه زیاتوي او دا هغه شیان دي چې د انسان په وس کې وي او هغه څه چې په هغې کې برابري کول د انسان په وس کې نه وي لکه د زړه مینه او یو لوري ته میلان په هغه باندې الله ① انسان نه نیسي (فتاوی قاضي خان)

⇦ انسان به خپلې ټولې ښځې نوې او زړه، پېغله او کونډه، جوړه او بیماره، حایضه او پاکه، حامله او غیر حامله ټولې به په یو شان ګڼي او د ټولو سره به د خپل نمبر مطابق ژوند کوي همدارنګه که ځینې ښځې یې مسلمانې او ځینې یې له اهل کتابو څخه وي دا به ټولې په یو ډول ژوند کې ساتي .

⇦ که په ښځو کې کومې یوې د خاوند سره د شپې تېرولو د نمبر حق بلې بنې (بلې ښځې ) ته ورکول غوښتل نو ورکولی یې شي او چې کله یې زړه وغواړي بېرته یې ځینې را ګرځولی شي (الجوهرة النیرة)

⇦ که کومې ښځې له خاوند سره نکاح وکوله یا یې خاوند ته مال ورکړو یا یې له هغه څخه مهر کم واخیستو او یا یې هغه ته روانې څه پیسې ورکولې پدې شرط چې دی به ددې سره تر نورو څخه یو څه زیات وخت تېروي نو دا شرط یې باطل دی تقسیم به یو برابر کیږي او دا خپل ورکړی مال له خاوند څخه اخستلی شي (عالمګیري/ التتارخانیة)

⇦ همدارنګه که خاوند یوې ښځې ته پیسې ورکړې چې دا دې له خپلو حقونو څخه تېره شي او د خاوند سره د خپل نوبت بلې ملګرې ته ورکړي نو دا معامله باطله ده دا مال به بېرته خاوند ته سپارل کیږي .

⇦ که د کوم سړي صرف یوه ښځه وه لکن ده هره ورځ روژه نیوه او هره شپه یې مونځ کولو نو ښځه یې قاضي ته شکایت کولی شي قاضي به ده ته امر کوي چې ځینې شپې د خپل مونځ کوه او ځینې شپې له دې سره اوسېږه او ځینې ورځې روژه نیسه او ځینې ورځې یې ددې لپاره خوره (فتاوی قاضي خان) ددې خوراک او روژې لپاره به کوم معلوم او معین وخت نه وي (بحر الرائق)

⇦ کله چې په سفر روانېدو او یوه ښځه یې له ځان سره بېول غوښتل نو چې کومه یې د بولو لپاره خوښوله اختیار دده سره دی او هغه چې په کور پاتې کیږي هغه دا غوښتنه کولی شي چې

لما سره به بیا په کور کې دومره وخت تېروې لکه څومره دې چې له دې سره په سفر کې تېر کړو (عالمګيري)

⇦ که د چا یو واده وي او بل واده کول غواړي او پدې ډاریږي چې که بل واده وکوي نو کېدای شي بیا مساوات ونشي کولی نو بیا واده کول ورته مکروه دي (السراجية)

⇦ که بنې رضا نه وي په یو کور کې دواړه اوسول نه دي روا بلکه دواړه به بېل بېل ځایونه لري او که دوی رضا وې نو بیا روا دي .



# مختلفې مسئلې

⇦ کوم شی چې بوی لري او چې څوک یې وخوري بل انسان ترینه تنګیږي نو خاوند کولی شي خپله ښځه د هغه شي د خوراک نه منع کړي.

⇦ همدارنګه سړی خپله ښځه مجبوره کولی شي چې هغه ځان جوړ کړي . (عالمګیري)

⇦ هغه ښځه چې پاکه وي او مونځ نه کوي نو خاوند یې په زور دېته مجبوره کولی شي چې هغه مونځ وکوي (فتح القدیر)

⇦ او که یوه ښځه مونځ نه کوي او خاوند یې هم نشي مجبوره کولی چې مونځ وکوي نو بیا یې د خاوند طلاقه کړي (عالمګیري)

⇦ ښځه که د خاوند د اجازې نه بغیر د دین په زده کړې پسې بهر ته وزي نو دا ناروا ده چې خاوند یې اجازه نه ورکوي نو نه به ځي او که په دیني مسئلو کې چېرته په ضروري مسئله کې یې شک وو نو که خاوند یې په هغه مسئله خبر وو پو ښتنه به ترې وکړي او که وربانډې پوه نه وو نو هغه ته به ووایي چې بیرون د عالم نه پوښتنه وکوي که هغه ورته وویل چې صحیح ده زه به درته پوښتنه وکوم نو بیا دا د وتلو اجازه نلري او که هغه انکار وکولو پدې صورت کې د پوښتنې لپاره ښځه وتلی شي (عالمګیري)

⇦ که د ښځې پلار وي هغه ډېر مشر وي او خدمت ته یې څه اړتیا وي د ښځې خاوند ښځې ته اجازه نه ورکوله چې دا د خپل پلار خدمت ته ورشي نو دا باید د هغه د اجازې نه بغیر ورشي او د خپل پلار خدمت وکوي که پلار یې مومن وي که کافر او که هرڅنګه وي دا به یې خدمت ته ورځي (عالمګیري)

⇦ هغه څوک چې مور یې ځوانه وي او ودونو او غمونو ته ځي خاوند یې نه وي نو زوی یې نشي منع کولی ترڅو چې دا خبره ښکاره نه شي چې دا د بد کاري لپاره وزي او کله چې دا خبره ښکاره شوه نو قاضي ته به خبره وروړي او هغه به ورته حکم کوي چې منع یې کړه بیا یې منع کولی شي (الکافي)



هغه نکاح ګاني چې ځان ترې ساتل په کار دي .

## نکاح المحلل

دا هغه نکاح وي چې یو څوک خپله مېرمن په طلاق ثلاثه (دریو طلاقونوسره) طلاقه کړي بیا یې چې ترڅو بل خاوند نکاح نه کړي او جماع ورسره ونه کړي نو اول خاوند ته نه روا کیږي او دا بل کس یې چې صرف ددې لپاره په نکاح کړي چې هغه اول خاوند ته یې حلاله کړي نو دې کس ته محلل وایي او دې نکاح ته د تحلیل نکاح وایي الله ① ددې نکاح په اړه فرمایي :

سورة البقرة آية ٢٣٠

فَإِن طَلَّقَهَا فَلاَ تَحِلُّ لَهُ مِن بَعْدُ حَتَّىَ تَنكِحَ زَوْجًا غَيْرَهُ

ترجمه : او که بیا یې طلاقه کړه نو بیا ده ته نه صحیح کیږي ترڅو بل خاوند ورسره جماع ونه کوي.

دا ډول نکاح مکروه ده (چې صرف ددې په نیت یې وکوي چې بل خاوند ته یې حلاله کړي) رسول الله ☸ ورڅخه منع کړېده په ترمذي کې د حضرت عبد الله بن مسعود ❼ نه روایت شوی دی هغه فرمایي : لَعَنَ رَسُولُ اللَّهِ الْمُحَلِّلَ وَالْمُحَلَّلَ لَهُ (رسول الله په

حلالونكي او هغه چا چې ورته حلالیږي دواړو باندې لعنت ویلی دی)

# د محرم نکاح

د هغه کس نکاح چې هغه د حج او یا عمرې لپاره په احرام کې وي ددېنه هم منع شوېده په صحیح مسلم کې د حضرت عثمان بن عفان ❼ نه روایت دی رسول الله ﷺ فرمایي : لَا يَنْكِحُ الْمُحْرِمُ وَلَا يُنْكَحُ وَلَا يَخْطُبُ (محرم سړی به نکاح نه کوي او نه به محرمه په نکاح کیږي او نه به د نکاح پیغام ورته لېږل کیږي)

نو که پدې وخت کې یې نکاح وکوله نو د احرام د وخت د تېرېدلو نه وروسته به دا نکاح له سر نه را ګرځول کیږي او له سر نه به عقد کیږي .

# نکاح الشغار

⇦ نکاح الشغار دیته وایي چې یو څوک خپله لور بل چاته ورکړي او دهغه کس نه د هغه لور وغواړي او دا یوه ښځه د بلې ښځې مهر شي دا نا روا ده د یو قول له مخې دا صحیح ده او شرط د مهر والي باطل دی نو دواړو ښځو ته به مهر مثل ورکول کیږي (الجوهرة النیرة) د حنفیانو په مذهب دا نکاح صحیح ده ځکه پدې کې غلطي صرف دا شوې ده چې یوه ښځه د بلې مهر شوی دی او دا مهر کېدل صحیح نه دي نو د حنفیانو په مسلک که په نکاح کې بالکل مهر یاد نه کړل شي هم نکاح صحیح ده مهر مثل لازمیږي او که داسې څه یاد کړل شي چې هغه د مهر کېدو قابل نه وي نو بیا هم نکاح صحیح ده بیا هم مهر مثل (چې د جینۍ په کورنۍ کې ددې په شان جینکیانو څومره مهر رواج وي) واجبیږي . .

⇦ نکاح الشغارد حنفیانو ، شافعیانو او مالکیانو په مذهب (صرف د امام احمد ابن حنبل صاحب رایه بدله ده) هغه ده چې دواړه ښځې یو د بل مهر وګرځول شي او که په نکاح کې د دواړو ښځو لپاره مهر ټاکل شوی وي دا

شغار نه دی دواړو ښځو ته به د هغوی ټاکل شوی مهر ورکول کیږي .

## مِتعه په اسلام کې

⇦ متعه موقتې نکاح ته ویل کیږي پدې سره نه حلال والی راځي (نه سړی او ښځه یو بل ته پرې حلالیږي) او نه ددېنه وروسته طلاق واقع کیږي او نه د نکاح نور حقونه وربانديې مرتب کېدلی شي (فتاوی قاضي خان)

⇦ موقته نکاح چې وي په هر صورت کې نا روا ده اگر که ددومره کلونو لپاره وي چې په عادي حالت کې دومره وخت انسان ژوندی نه پاتې کیږي بیا هم حرامه ده (الهدایة) (د مثال په توگه که د نکاح په وخت کې په ایجاب کې ورته ووایي چې ماته خپل ځان په نکاح راکړه د زرو کلونو لپاره او هغه ورته ووایي چې در مې کړه بیا هم حرامه ده)

⇦ امام شمس الایمة الحلواني رحمه الله فرمایي که داسې وخت یې یاد کړو چې په یقني ډول تر هغه وخته پورې نشي پاتې کېدلی لکه زر کلونه اویا تر قیامت پورې یا د عیسی علیه السلام تر نازلېدلو پورې یا د دجال تر راوتلو پورې او داسې نور .. نو پدې صورتونو کې نکاح صحیح ده او شرط یې لغوه دی

⇦ که په موقته نکاح کې وخت هم تعین نه کړي بیا هم حرامه ده (یعني ووایي د یو څه وخت لپاره ځان ماته په نکاح راکړه او هغه ورته ووایي درمې کړو) . (النهر الفائق)

او که چا نکاح کوله او په زړه کې یې دا وو چې د یو څه وخت لپاره به یې وساتم بیا به یې طلاقه کړم لکن په الفاظو کې یې وربانديې تلفظ ونه کولو نو نکاح صحیح ده (التبیین)

## د نیکي مېرمن صفات

مسلمانه مېرمن باید په ټولو نېکو صفاتو باندې پوښلې وي د مثال په ډول یې یو څو خاص صفتونو ته ستاسې فام را ګرځوم او کله چې یوه مېرمن غواړي چې ځان ښه مېرمن ثابته کړي نو چې ترڅو یې وس وي په ځان کې دې نېک صفات را جمع کړي او زه د نېکو صفاتو څخه یو څو مشت نمونه خروار ستاسې په وړاندې اېږدم .

### ۱ . دیانت او نېک اخلاقي

ترهرڅه د مخه باید مسلمانه مېرمن د دیانت او نېکو اخلاقو خاونده وي چې د همدې دوو شیانو له امله د الله ① عابده وي او په ژوند کې کوښښ کوي چې د الله تعالی حکمونه عملي کړي او له هغه

شیانو ښځه ځان وساتي چې الله ① ورڅخه منع کړې وي نو ددې به د خاوند لپاره په دنیا کې لویه فایده دا وي چې دا ډول مېرمن به کله هم دده سره په هیڅ ډول سره خیانت نه کوي او خاوند ته به اجازه ورکوي چې پدې باندې هرډول اعتبار او اعتماد وکوي او د داسې مېرمن په غېږه کې چې کوم ماشومان تربیه کیږي د هغوی به بنیاد پوخ وي او د الله ① په نوم باندې به له ماشومتوب نه تربیه شوي وي او رسول الله ﷺ د همداسې ښځې په خوښولو باندې تاکید کړی دی د بخاري شریف په حدیث کې یو ځل مخکې هم تېر شول رسول الله ﷺ فرمايي : تنْكَحُ **اَلْمَرْأَةُ لِأَرْبَعٍ : لِمَالِهَا , وَلِحَسَبِهَا , وَلِجَمَالِهَا , وَلِدِينِهَا , فَاظْفَرْ بِذَاتِ اَلدِّينِ تَرِبَتْ يَدَاكَ (متفق عليه) .**

**ترجمه :** یعني ښځه د څلورو شیانو له امله په نکاح اخستل کیږي (د نکاح لپاره خوښول کیږي) ۱. د هغې د مال له امله ۲. د هغې د جمال (ښائست) له امله ۳. د هغې د نسب له امله ٤. د هغې د دین له امله او ته په هغې باندې کامیاب شه چې د ښه دین خاونده وي لاس د په خاورو سپېره شه (ددې مطلب ښېرا نه ده بلکه مطلب یې دی چې مالدار شې ځکه مال ټول په اصل کې خاوره ده (فتح الباري) )

او داسې مېرمن چې وي کله هم خپل مسلمان خاوند له هغې څخه نفرت نه کوي او که چېرته کومه غلطي ترېنه وشي هم نو دهغې ديانت او نېک اخلاق يې شفاعت کوي او خاوند مجبور کوي چې خپل نظر ښکته کړي او دهغې خطا ورته معاف کړي د حضرت ابي هريره ❼ نه روايت دی هغه فرمايي چې رسول الله ☸ فرمايل :

لا يفرك مؤمن مؤمنة، إن كره منها خلقاً رضي منها آخر.<رواه مسلم.

يعني مسلمان له مسلمانې ښځې څخه نفرت نه کوي او د هغه سره عداوت نه کوي که يې دهغې يو خوی خوښ نه شي بل يې خوښيږي .

## ٢. د خاوند اطاعت

نېکه ښځه هغه وي چې په ټولو داسې کارونو چې د الله ① معصيت پکې نه وي د خپل خاوند اطاعت کوي او د هغه خبره مني او په کوم کور کې چې تر څومره حده پورې ښځه د خاوند لپاره تابعداره وي په هغه کور کې همدومره خوشحالي وي د حضرت ابي امامة ❼ نه روايت دی هغه وايې چې رسول الله ☸ فرمايل ما استفاد المؤمن بعد تقوى الله – عز وجل – خيراً له من زوجة صالحة إن أمرها أطاعته، وإن نظر إليها سرته، وإن أقسم عليها

أبرته، وإن غاب عنها نصحته في نفسها وماله. رواه ابن ماجه

ترجمه : د الله د تقوى نه بغير مسلمان تر نيکې ښځې غوره شی لاس ته نه دي راوړي چې امر ورته وکوي اطاعت يې کوي چې ورته وګوري (ليدل يې) خوشحال کړي ، که پداسې شي باندې قسم وکوي چې ددې په اختيار کې وي نو له قسم نه يې خلاص کړي او که خاوند ترينه چېرته لاړ شي نو دا يې په کور کې د مال او ددې د ځان ساتنه کوي .

## ٣. د خاوند سره مينه

نېکه ښځه بايد له خپل خاوند سره تر ممکن حد پورې مينه ولري او همدا مينه د يوې خوشحالې کورنی د جوړولو سبب کيدای شي ښځه به له خپل خاوند سره داسې مينه کوي چې هغه مينه ددې سبب جوړ شي چې د خپل خاوند سره ژور تعلقات ولري او هر وخت په هر صورت کې دا په ژوند کې له خاوند سره تر بل هر چا نه خوشحاله وي او هر وخت د داسې کارونو کوښښ وکوي چې خاوند پرې رضا کيږي او د هغه په مخ کې مال ، دولت او خپل ښه ژوند دې ته هېڅ نه ښکاره کيږي پدې اړه يو ژوندی مثال د حضرت زينب (بنت رسول الله ﷺ) دی قصه يې د اسلام تاريخ له پانو څخه په دريمه برخه کې تېره شويده د هغې خاوند تر ډېره وخته پورې په اسلام نه وو مشرف شوی د بدر

په غزا کې ژوندی اسیر کړل شو هغه وخت چې مسلمانانو د ټولو اسیرانو څخه د فدیې اخستل شروع کړل نو دې مبارکې هم د خپل خاوند د خلاصولو لپاره خپله د سرو زرو غاړکی ور ولېږله او دا هغه غاړکۍ (آمېل) وه چې کله دا واده کېده خپلې مهربانې مور حضرت خدیجې رضی الله عنها ورکړې وه کله چې رسول الله ﷺ ته وړاندې کړل شو رسول الله ﷺ هغه غاړکۍ و پېژندله او د خپلې لور مجبوریت ورباندې سخت تاثیر وکولو نو مهربان قائد خپلو صحابه وو ته وویل که تاسې ددې دا بندي بغیر د فدیې نه ورخلاصولی شئ نو ور خلاص یې کړئ بیا صحابه وو همداسې وکړل (د اسلامي تاریخ له پاڼو څخه دریمه برخه)

نو د حضرت زینب رضی الله عنها پدې قصه کې د خاوند سره پوره وفا او خاوند په ټولو مالونو باندې غوره کول ښکاره کیږي .

## ٤. د خاوند رضا کول.

د نیکې ښځې له اخلاقو څخه یو دادی چې کله خاوند ورڅخه په څه خبره غصه شي دهغه زر د رضا کولو کوښښ کوي د حضرت انس بن مالک ❼ نه روایت دی هغه فرمایي چې رسول الله ﷺ فرمایل : زه تاسې ته وښیم چې په جنت کې به ستاسې ښځې کومې ښځې وي؟ دوی ورته وویل هو یا رسول الله ﷺ

بیا رسول الله ﷺ و فرمایل : هغه مینه ناکې او اولاد راوړونکې ښځې وي کله چې خاوند په څه خبره تربېنه غصه او خفه شي دا ورته وایي دادی زما لاس ستا په لاس کې دی تر هغه وخته به زه سترګه پټه نه کړم (ویده به نشم) ترڅو چې ته رضا شوی نه وې (روا الطبراني)

## ۵. د خاوند خدمت کول

د نیکې ښځې له صفاتو څخه یو دادی چې هغه په ښه ډول دخاوند او د هغه د مېلمنو خدمت کوي د رسول الله ﷺ ټولو بیبیانو به په مینه دده ﷺ او دده ﷺ د مېلمنو زیات قدر کولو د رسول الله ﷺ لور فاطمې بي بي رضی الله عنها د خپل خاوند حضرت علي ❼ دومره خدمت کولو چې په لاسونو کې یې فرق راغلو د ډېرې زیاتې میچن ګرځولو نه ستړې شوه کله چې رسول الله ﷺ ته راغله او د یو خادم غوښتنه یې ورڅخه وکوله نو رسول الله ﷺ ورته اذکار وښودل چې دا اذکار وایه تر خادم نه درته غوره دي .

## ٦. د خاوند د مال ساتنه کول

د نیکې ښځې له صفاتو څخه یو دا وي چې هغه د خپل خاوند دمال ساتنه په ښه توګه کوي او که

كوم لوی مصرف کوي خاوند باید وربانديړ خبر وي او د هغه مشوره پکښ وي لکن په هغه صورت کښ چې خاوند بخیل وي او په دوی باندې ضروري مصرف نه کوي پدې صورت کښ ښځه کولی شي دهغه د علم نه بغیر دومره څه دده د مال نه راواخلي چې ددې او ددې د اولاد مصرف شي رسول الله ﷺ فرمایي : والمرأة راعية في بيت زوجها ومسئولة عن رعيتها یعني ښځه د خاوند په کور کښ د رعیت خاونده ده او په آخرت کښ به ددې د رعیت د حقونو په اړه ددې نه پوښتنه کیږي او د ابن ماجه په یو حدیث کښ رسول الله ﷺ د نیکې میرمن په صفاتو کښ فرمایي : وإن غاب عنها نصحته في نفسها وماله یعني که دا خاوند په کور کښ نه وي دا د خاوند لپاره د هغه د مال او د خپل ځان حفاظت او ساتنه کوي .

## ۷. د اولاد پالنه کول .

د نیکې میرمن بل له لویو او ښکلیو صفاتو څخه دادی چې د اولاد تربیه او پالنه په ښه توګه سره کوي او هغوی ته نېک خویونه ور ښیي ځکه پلرونه اکثر په خپلو کارونو کښ له کور نه بهر مصروف وي یوازې مور په کور کښ وي چې په ماشومتوب کښ ماشوم ته سمې خبرې اذکار و غیره ور زده کړي او هغوی سمې لارې ته برابر کړي او

دا یو د مور له مسئولیتونو څخه دی که پدې کې مور کوتاهي وکوله په دنیا او آخرت کې یې تاوان هم مور ته رسیږي رسول الله ﷺ فرمایي : په انسانانو کې چې چاته هم څه رعیت ور په غاړه شي او پداسې حالت کې مړ شي چې د خپل رعیت سره یې خیانت کړی وي او د خپل رعیت حقونه یې نه وي ور په ځای کړي الله ① به جنت وربانديې حرام کړي (صحیح مسلم)

## ۸. د خاوند د عزت ساتل

په خاصه توگه هغه وخت چې خاوند په کور نه وي نېکه مېرمن د خپل خاوند د عزت ساتنه کوي او د هغه په غیاب کې په هغه پسې بد نه وایي او د هغه عیبونه خلکو ته نه ښکاره کوي بلکه که بل څوک ددې د خاوند سپکاوی کوي نېکه مېرمن یې دفاع کوي او د خلکو په مخ کې د هغې عزت نه کموي او کوښښ کوي چې خپل خاوند د خلکو په سترگو کې لا دروند کړي او د خلکو په مخ کې د خپل خاوند پټې خبرې نه ښکاره کوي رسول الله ﷺ فرمایي : د قیامت په ورځ تر ټولو بد خلک هغه سړی دی چې خپلې ښځې ته نېږدې شي او ښځه خپل خاوند ته نېږدې شي بیا په دوی کې یو د بل سر افشاء کړي (راز یې څرگند کړي) (صحیح مسلم) .

## ۹. په نېکو کارونو کې د خاوند مرسته کول

د نیکې مېرمنې بل نېک صفت د خپل خاوند سره په ښو کارونو کې مرسته کول دي چې څومره نېک او د خیر کار وي که نېکه مشوره وي او که نېکه نظریه وي په هر ډول د خاوند سره مرسته کوي د ټولو مسلمانانو لپاره په زړه پورې نمونه حضرت خدیجه رضی الله عنها ده چې په هغه وخت کې یې د رسول الله ☸ مرسته کوله چې ټولې دنیا پرېښی وو او هېچا ورسره همکاري نه کول دې مبارکې رضی الله عنها یې په ځان او مال ملاتړ وکولو نه یوازې دا چې په ټولو ښځو کې یې اول ورباندې ایمان راوړو بلکه خپل ټول دولت یې دده مبارک په اختیار کې ورکړو دده خوښه وه چې هرڅنګه یې مصرف کولو او هرچا ته یې چې ورکولو .

د صلح حدیبې تفصیلي قصه (د اسلامي تاریخ له پاڼو څخه) کتابونو کې تېره شوېده پدې وخت کې د رسول الله ☸ مېرمن ام سلمة رضی الله عنها د رسول الله ☸ سره د سفر ملګرې وه چې کله د مکې د کفارو سره صلح وشوه نو رسول الله ☸ صحابه وو ته وویل چې خپلې قربانۍ همدلته حلالې کړئ او سرونه و خریئ له همدې ځای نه بېرته ستنېږو نو صحابه وو نه غوښتل چې د عمرې نه بغیر بېرته ستانه شي نو چې رسول الله ☸ دوی ته اواز

وکولو چې خپلې قربانۍ حلالې کړئ هېچا هم د خپل مال په حلالولو شروع ونه کوله رسول الله ﷺ خیمې ته راغلو ام سلمة رضی الله عنها ته یې ویل دې خلکو زما خبره ونه منله ... هغې مبارکې ورته وویل دوی ته څه مه وایه ته پخپله ورشه خپله قربانۍ حلاله کړه او سر خریونکی دې را وغواړه چې ستا سر وخریيي چې کله رسول الله ﷺ همداسې وکولو ټولو صحابه وو یې متابعت وکولو دا د نیکي بي بي مشوره وه چې دخپل خاوند مرسته یې وربانديې وکوله.

## ۱۰. د خاوند په مشکلاتو کې قرباني ورکول.

د نیکې ښځې له صفاتو څخه یو دادی چې کله په خاوند باندې څه تکلیف راشي او ددې په لاس کې څه وي نو بې تکلیفه د خپل خاوند څخه د تکلیف د لرې کولو لپاره دهرشي قربانۍ ته تیاریږي او بغیر ددې نه چې په خپل خاوند باندې د خپل کمک احسان بار کړي په خوشحالۍ سره هرڅه د هغه په وړاندې ایږدي په بخاري شریف کې د حضرت زینب الثقفیة رضی الله عنها (د حضرت عبد الله ابن مسعود ❼ ) د مېرمن نه واقعه نقل شویده چې هغه فرمایي رسول الله ﷺ و فرمایل: ای ښځو صدقه ورکړئ اګر که ستاسې له زیوراتو څخه هم

وي دا فرمايي ما چې دا واورېدل نو زه کور ته راغلم حضرت عبد الله ابن مسعود ❼ ته مې وويل : ته ورشه د رسول الله ☸ څخه پوښتنه وکوه که زما له لوري خيرات درکول تاته صحيح کيږي نو زه به دا خپل زيورات تاته درکړم او که تاته نه صحيح کيږي بيا به يې زه بل چا ته ورکړم ؟ هغه راته وويل ددې پوښتنې لپاره ته خپله لاړه شه دا فرمايي زه راغلم د رسول الله ☸ دروازې ته چې را ورسېدم ومې ليدل چې يوه بله انصاريه ښځه هم ولاړه ده او دهغې هم همدا مسئله په کار ده لکن رسول الله ☸ يو ډول تاثير درلود مونږ نشواى ورتلى پدې وخت کې حضرت بلال ❼ را ووتلو مونږ ورته وويل چې ورشه د رسول الله ☸ نه پوښتنه وکوه چې د دوى خيرات د دوى خاوندانو او د دوى په کور کې يتيمانو ته ورکول صحيح دي؟ حضرت بلال ❼ چې ورغلو پوښتنه يې ترې وکوله رسول الله ☸ ورڅخه وپوښتل چې دا ښځې څوک دي؟ حضرت بلال ❼ ورته وويل يوه انصاريه ښځه ده او بله زينب ده رسول الله ☸ ورڅخه پوښتنه وکوله چې په زينبانو کې کومه يوه ده؟ هغه ورته وويل د حضرت عبد الله بن مسعود ❼ مېرمن . بيا رسول الله ☸ ورته وويل (که دوى خپلو خاوندانو او خپلو يتيمانو ته صدقه ورکړي) د

دوی لپاره دوه اجرونه دي یو اجر د صدقې او بل اجر یې د خپلولۍ دی (صحیح البخاري)
همدارنګه پدې ځای کې یوځل بیا د حضرت خدیجې رضی الله عنها مثال در په زړه کوم چې ټول عمر یې خپل مال او دولت له رسول الله ﷺ نه قربان کړو.

## ۱۱. په مشکلاتو صبر کول.

د نېکې مېرمن له صفاتو څخه دا هم دی چې د خپل خاوند سره په هرحالت کې صبر وکوي او دهغه سره ټول تکلیفونه په ورین تندي قبول کړي او هغه ته بیا بیا ور یاده نه کړي چې ستا سره د واده کولو له امله زما دا مشکلات په برخه شول بلکه باید فکر وکوي چې دا مشکلاتو زمونږ په شریکه په برخه دي او که غربت وي او که مسافري باید په ورین تندي یې له خپل خاوند سره و زغمي .

## ۱۲. د خپل خاوند لپاره ځان جوړول.

ښځه باید کوښښ وکوي چې کله یې هم خاوند ددې په ځان کې داسې څه ونه ویني چې دهغه زړه ترېنه بد شي او یا د هغه ترېنه کرکه وشي او هر وخت کوښښ وکوي چې د خاوند سره پداسې حالت کې مخامخ شي چې دې له مخکې نه ځان تیار کړی وي او ډېرې ښځې داسې وي چې هغوی په عام ژوند

کې ځان نه جوړوي او هغه وخت يې ځان ښائسته کولو ته ور پام شي چې بهر ته وتلو ته تياره شي او يا ورکره نورې ښځې مېلنې راشي او پدې وخت کې د ځان جوړول ورته دومره ضروري نه دي لکه د خپل خاوند لپاره چې ځان جوړول ورباندې ضروري دي .

## د نېک خاوند صفات .

کله چې ښځه د ځان لپاره او يا پلار د خپلې لور او يا ورور د خپلې خور لپاره خاوند خوښوي بايد د امام غزالي رحمه الله يوه خبر يې حتماً په ياد وي چې هغه فرمايي د ښځې لپاره د خاوند په کتلو کې د هلک لپاره د ښځې له کتلو نه زيات کوښښ کوئ ځکه که د هلک ښځه خوښه نه شي نو د هغه په لاس کې د طلاق اختيار شته او که ښځه څومره هم د خپل خاوند سره تنګه شي لکن بيا هم ددې په اختيار کې طلاق نشته .

حضرت عائشه رضی الله عنها فرمايي : په نکاح ورکول لکه د چا په ملک کې ورکول داسې دي بايد هرڅوک فکر وکوي چې خپله د عزت ټوټه چېرته ايږدي .

نو کله چې ښځه د خپل ځان او يا کوم سړی د خپلې لور او خور لپاره خاوند خوښوي بايد کوښښ وکوي ترڅو چې کېدلی شي هغه په ټولو نېکو صفاتو باندې ښائسته شوی وي د ښه خاوند يو څو

صفات هم د نمونې په ډول ستاسې په وړاندې ایږدم .

۱. خاوند باید دین دار وي .

الله ① فرمایي :

سورة بقرة آية ۲۲۱

وَلَعَبْدٌ مُّؤْمِنٌ خَيْرٌ مِّن مُّشْرِكٍ وَلَوْ أَعْجَبَكُمْ

ترجمه : بېشکه یو مومن غلام غوره دی له یوه مشرک سړي نه .

په دین دار خاوند کې یوه خاصه خبره دا وي چې که خپله میرمن یې خوښه شي نو عزت یې کوي او که یې خوښه نه وي هم نو ظلم وربانديي نه کوي .

په صحیح ترمذي کې د حضرت ابي هریره ❼ یو حدیث نقل شوی دی رسول الله ❁ فرمایي :

إِذَا أَتَاكُمْ مَنْ تَرْضَوْنَ خُلُقَهُ وَدِينَهُ فَزَوِّجُوهُ إِلَّا تَفْعَلُوا تَكُنْ فِتْنَةٌ فِي الْأَرْضِ وَفَسَادٌ عَرِيضٌ.

ترجمه : کله چې تاسې ته داسې څوک راشي چې د هغه اخلاق او دیانت ستاسې خوښ وي نو تاسې هغه ته واده ورکړئ او که داسې ونه کوئ نو دا به په زمکه کې فتنه او لوی فساد شي .

دین دار خاوند چې په قهر شي ظلم نه کوي او چې څه لویه خبره نه وي نو هغه غصه نه کوي او د خپلې مېرمن په معامله کې هېڅ ډول ظلم نه کوي

او كوښښ كوي چې په ژوند كې د رسول الله ﷺ دا حديث عملي كړي چې ابن ماجه نقل كړی دی رسول الله ﷺ فرمايي :

خيركم خيركم لأهله وأنا خيركم لأهلي

ترجمه : په تاسې كې غوره كس هغه دی چې د خپل اهل لپاره غوره وي او زه په تاسې كې د خپل اهل لپاره غوره يم .

نو كه ښځه د ځان لپاره خاوند ګوري يا څوك د خپلې لور او خور لپاره خاوند خوښوي نو بايد تر هرڅه د وړاندې يې د ديانت په اړه لټون وكوي .

## ۲. په قران كريم باندې پوهه

خاوند بايد څه نا څه په قران كريم باندې علم ولري او څه نا څه يې بايد ياد وي په بخاري شريف كې د حضرت سهل بن سعد الساعدي ❼ حديث دی هغه فرمايي :

رسول الله ﷺ ته يوه ښځه راغله ويل يې زه ددې لپاره راغلم چې خپل ځان رسول الله ﷺ ته هبه كړم .

رسول الله ﷺ ورته وكتل او بيا يې لږ ساعت ورته كتل بيا يې سر (په نهی) سره ورته و ښورولو كله چې ښځه پوه شوه چې رسول الله ﷺ زه قبوله نه كړم نو هغه كېناسته د صحابه وو څخه يو كس

را پاڅېدو ویل یې: یا رسول الله ﷺ که تاسې ته نه وي په کار نو ماته یې په نکاح کړئ.
رسول الله ﷺ ورته وویل: لتا سره څه شی شته؟
صحابي ورته وویل: نه یا رسول الله ﷺ.
رسول الله ﷺ ورته وویل: ځه کور ته د لاړ شه وګوره چې که څه د پیدا کړل بېرته راغلو ویې ویل: نه رسول الله ﷺ هېڅ مې پیدا نه کړل.
رسول الله ﷺ ورته وویل: ورشه وګوره اګر که یوه د وسپنې ګوتمه دې پیدا کړه هم صحیح ده.
هغه بېرته راغلو ویل یې: هېڅ شی مې پیدا نه کړل یا رسول الله ﷺ حتی چې یوه د وسپنې ګوتمه مې هم پیدا نه کړه.
بیا یې وویل: دا زما لنګ دی (حضرت سهل ❼فرمایي چې څادر یې نه درلود) دا به زه ورکړم.
رسول الله ﷺ ورته وویل: ته به پدې لنګ څه وکړې که ته یې واغوندې نو هغې ته به ددې هېڅ نه رسیږي او که هغه یې واغوندي تاته څه ترینه نه پاتې کیږي.
سړی کېناستلو چې مجلس لږ اوږد شو سړی پاڅېدو روان شو چې رسول الله ﷺ ولیدو چې روان وو شا یې مجلس لوري ته کړې وه رسول الله ﷺ امر وکولو چې را ویې ګرځوئ چې راوستل شو رسول الله ﷺ ورڅخه

ويپوښتل : د قران کريم نه درسره څه شی شته؟ (څه شی د ياد دي)

صحابي وويل : زما سره دا دا سورتونه دي او رسول الله ﷺ ته يې ورشمار کړل .

رسول الله ﷺ ورته وويل : دا ته په يادو ويلی شې؟

هغه صحابي ورته وويل : هو

رسول الله ﷺ ورته وويل : ځئ لاړ شئ دا ماتاته په هغه څه درکړه چې لتا سره دي له قران نه .

## ٣. خاوند بايد غيرتمن وي .

خاوند بايد داسې څوک وي چې غيرت او عزت د هغه په خټه کې ګډ شوی وي او ترڅو چې خاوند غيرتمن نه وي هغه نشي کولی ښه ژوند جوړ کړي او يا خوشحاله او د عزت نه ډکه کورنۍ ولري رسول الله ﷺ فرمايي : خلک هم داسې خزانې دي لکه د سرو او سپينو خزانې هغه کسان چې په جاهليت کې غوره وو هغوی په اسلام کې هم غوره دي چې يوځل پوه شي . (صحيح مسلم)

## ٤. خاوند بايد نېک اخلاق وي .

کوم خاوند چې نېک اخلاق ولري دهغه مېرمن کولی شي له هغه سره په خوشحالی کې ژوند وکوي او هغه خاوند چې اخلاق يې خراب وي د مختلفو

اړخونو نه ده ته خپله او هغه کسان چې دده سره یې تعلق وې هغوی ته د مشکلاتو لامل ګرځي حضرت فاطمه بنت قیس رضی الله عنها فرمایي : ماته مې خاوند طلاق راکړو رسول الله ﷺ راته وویل چې کله د عدت تېر شو نو بیا ما خبره کړه چې کله مې خبر کړو نو دریو کسانو زما نه د واده مطالبه وکوله .

حضرت معاویه ❼ ، ابو جهم ❼ او اسامه بن زید ❼ رسول الله ﷺ ماته ویل : حضرت معاویه ❼ پدې وخت کې یې لاس خالي دی څه شی ورسره نشته او ابو جهم د ښځې وهونکی دی (خپله ښځه وهي) لکن اسامه بن زید .... دې ویل اسامه بن زید اسامه بن زید ..

رسول الله ﷺ ورته وفرمایل : د الله او دهغه د رسول اطاعت ستا لپاره غوره دی دا فرمایي بیا مې د زید سره واده وکولو.

نو دا ښځه رسول الله ﷺ د ابو جهم سره د نکاح کولو څخه منع کړه ځکه چې هغه ښځه وهونکی سړی دی .

## ٥. خاوند به د شریعت تابع وي

کوم خاوند چې د شریعت تابع وي او هره ورځ د شریعت د مسئلو د زده کړې په کوښښ کې وي له هغه سره د مېرمن وخت په اسانه تېرېږي ځکه چې

په کور کې کوم مشکل راشي نو ښځه او خاوند دواړه دهغې د حل لپاره قران اسلام او شريعت ته مخه کړي نو مشکل حل دی او ښکاره خبره ده چې قران کريم د هرچا په حق کې سمه او د انصاف فيصله کوي.

## ٦. خاوند بايد مخلص وي .

خاوند بايد داسې کس وي چې ښځې ته کومه خبره په خوله باندې کوي په زړه يې هم هماغه خبره وي زړه او خوله يې يو له بل سره بدل نه وي د خپلې مېرمن سره منافقت نه کوي .

## ٧. خاوند بايد د مېرمن له حقونو خبر وي.

خاوند بايد داسې څوک وي چې پدې پوه وي چې دده د مېرمن په ده باندې څه حقونه دي او دهغې حقونو پوره کول خپله ذمه واري وګڼي .
٨. ښه خاوند هغه وي چې د دنيا مينه يې په زړه کې کمه او د آخرت غم يې په زړه کې زيات وي داسې خاوند د خپلې مېرمن لپاره ښه ملګرى ، ښه استاذ او ښه پالونکى کېدلى شي .
٩. ښه خاوند هغه وي چې د وخت قېمت پېژني او هروخت کوښښ کوي چې خپل وخت يې هم ضائع نشي او

د مېرمن د وخت هم قدر ورسره وي او ساتنه يې کوي .

۱۰. خاوند بايد پاک وي يعني په ظاهر او باطن کې يې پاکي خوښه وي چې په ښکاره سره د پاک لباس پاک خوراک خوښونکى وي او په باطن کې يې هم رذيل او ذليل کارونه نه خوښيږي .

۱۱. ښه خاوند شکر کونکى وي چې کله يې مېرمن د کور په کارونو کې او دده په حقونو کې ښه وظيفه اجراء کړي نو خاوند يې شکريه وکوي ترڅو هغې ته نوره هم د ښو کارونو حوصله په لاس ورشي .

۱۲. ښه خاوند د خپلولي ساتونکى وي د خپلوانو سره ښه تعلق ساتي په خاصه توګه د ښځې له لوري يې چې کوم خپلوان دي چې د هغوى سره ښه تعلق ساتي پدې سره مېرمن خوشحاليږي او په کور کې د مينې او الفت د فضاء په را پيدا کولو کې مرسته کوي .

# په ښځه باندې د خاوند حقوق

## ۱. د خاوند مرتبه منل

ښځه باید تر هرڅه د وړاندې دا ومني چې د خاوند مرتبه په کور کې تر ښځې نه لوړه ده الله ① پدې اړه فرمايي :

سورة النساء آية ٣٤

**الرِّجَالُ قَوَّامُونَ عَلَى النِّسَاء بِمَا فَضَّلَ اللّهُ بَعْضَهُمْ عَلَى بَعْضٍ وَبِمَا أَنفَقُواْ مِنْ أَمْوَالِهِمْ**

ترجمه : سړي په ښځو مسلط کړل شوي دي ددې امله چې الله ځينې مخلوق په ځينې باندې غوره کړی دی او بل دا چې هغوی دد ې ژوند په جوړولو کې مال مصرف کړی دی (مهر او داسې نور... )

## ۲. د خاوند احترام کول

ښځه باید د خاوند قدر او احترام وکوي رسول الله ☸ په ښځه باندې د خاوند د احترام د لازموالي په اړه فرمايي :

لَوْ كُنْتُ آمِرًا أَحَدًا أَنْ يَسْجُدَ لِأَحَدٍ لَأَمَرْتُ الْمَرْأَةَ أَنْ تَسْجُدَلِزَوْجِهَا

ترجمه : که ما چا ته امر کولی چې چاته د سجده وکوي نو ښځې ته به مې امر کړی وو چې خپل خاوند ته سجده وکوي .

حضرت حصين بن محصن ❼ فرمايي زما عمه ماته قصه کوله چې د څه کار لپاره رسول الله ﷺ ته ورغلم هغه راته وفرمایل : ای خاوند د شته؟ ما ورته وویل هو بیا رسول الله ﷺ راڅخه وپوښتل : ته د هغې لپاره څنګه یې؟ ما ورته وویل : ترڅو مې چې وس وي دومره اطاعت یې کوم بیا رسول الله ﷺ راته وویل چې خپل ځان ته وګوره چې ته هغه ته څومره نیږدې او که لرې یې دا ستا اور او جنت دی . (یعني که اطاعت او احترام یې کوې جنت ته نیږدې کیږې او که نا فرماني یې کوې نو اور ته) . (صحيح الترمذي)

رسول الله ﷺ فرمایي :

**المرأة إذا صلت خمسها ، وصامت شهرها ، وأحصنت فرجها ، وأطاعت زوجها ، فلتدخل من أى أبواب الجنة شائت**

ترجمه : زنانه چې خپل پنځه وخته مونځ وکوي د روژې میاشت یې روژه ونیسي ، خپله شرمګاه د ګناه څخه وساتي ، د خپل خاوند اطاعت وکوي بیا یې چې له کومې دروازې نه خوښه وي جنت ته د ننوزي (حديث حسن اخرجه ابو نعیم)

٣. د خاوند سره به په نېک کار کې مرسته کوي

٤. چې څوک يې د خاوند نه وي خوښ هغه ته به اجازه نه ورکوي چې د خاوند کور ته يې را ننوزي.

٥. د خاوند خدمت به کوي

لکه خاوند چې بهر ته وزي او د خپلې مېرمن لپاره کار کوي داسې مېرمن هم بايد د خپل خاوند لپاره کار وکوي او د خاوند خدمت وکوي

الله ① فرمايي :

سورة البقرة آية ٢٢٨

وَلَهُنَّ مِثْلُ الَّذِي عَلَيْهِنَّ بِالْمَعْرُوفِ وَلِلرِّجَالِ عَلَيْهِنَّ دَرَجَةٌ

ترجمه : او د دوی لپاره په خاوندانو باندې همدومره حقونه دي څومره چې په دوی باندې د خاوندانو دي او د سړيو لپاره په دوی باندې يوه درجه (بهتري) شته .

٦. د خاوند دکور نه بهر خپله پرده ساتل

ښځه به کوښښ کوي چې د خپل خاوند له کور نه بهر به خپلې جامې له خپل ځان څخه نه لرې کوي

پدې اړه رسول الله ﷺ خاصه منع فرمایلې ده رسول الله ﷺ فرمایي :

**مَا مِنِ امْرَأَةٍ تَضَعُ ثِيَابَهَا فِي غَيْرِ بَيْتِ زَوْجِهَا إِلَّا هَتَكَتِ السِّتْرَ بَيْنَهَا وَبَيْنَ رَبِّهَا**

ترجمه : هره ښځه چې کېږدي (له خپل ځان څخه) جامې د خپل خاوند د کور نه بغیر په بل کور کې دې د خپل رب او خپل ځان په مینځ کې پرده ماته کړه . (روا



۷. چې خاوند يې په کور کې وي مېرمن به نفلي روژه نه نيسي

پدې اړه پوره تفصيل ددې سلسلې په څلورم کتاب کې په ممنوع روژو کې تېر شوی دی رسول الله ﷺ فرمايي :

**لَا يَحِلُّ لِلْمَرْأَةِ أَنْ تَصُومَ وَزَوْجُهَا شَاهِدٌ إِلَّا بِإِذْنِهِ وَلَا تَأْذَنَ فِي بَيْتِهِ إِلَّا بِإِذْنِهِ** الحديث

ترجمه : ښځې ته روا نه دي چې دا روژه ونيسي او خاوند يې په کور کې وي مگر دده په اجازه سره او دخاوند کور ته به چاته د راتلو اجازه نه ورکوي مگر دده په اجازه سره (رواه البخاري و مسلم)

۸. ترڅو چې خاوند اجازه نه وي کړې دده له مال نه به خيرات نه کوي .

ښځه به صرف دومره خيرات کوي چې خاوند ورته اجازه کړې وي او په خپل سر به د خاوند له مال څخه خيراتونه نه کوي پدې اړه رسول الله ﷺ فرمايي :

**لَا تُنْفِقُ امْرَأَةٌ شَيْئًا مِنْ بَيْتِ زَوْجِهَا إِلَّا بِإِذْنِ زَوْجِهَا قِيلَ يَا رَسُولَ اللَّهِ وَلَا الطَّعَامُ قَالَ ذَاكَ أَفْضَلُ أَمْوَالِنَا**

ترجمه : ښځه به نه نفقه کوي د خپل خاوند له کور نه هېڅ شی مګر د خاوند په اجازه . له رسول الله ﷺ نه پوښتنه وشوه چې یا رسول الله ﷺ طعام هم نه؟ رسول الله ﷺ ورته و فرمایل دا خو زمونږ په مالونو کې بهترین مال دی . (صحیح الترمذي)

امام بغوي رحمه الله فرمایي : علماوو پدې اجماع کړېده چې د ښځې لپاره روا نه دي چې دا د خپل خاوند له کور نه څه خیرات کړي مګر د هغه په اجازه سره او که یې کومه ښځه وکوي نو دېته وربانديې ګناه ورکول کیږي ثواب نه ورکول کیږي .

## ۹. د خاوند په فقر به صبر کوي.

په ښځه باندې د خاوند حق دی چې هغه به له ده سره دده په فقر باندې صبر کوي او د مسلمانې ښځې په وړاندې د رسول الله ﷺ د کور ښکلی مثال پروت دی چې حضرت عائشه رضی الله عنها حضرت عروة ❼ ته فرمایل : د رسول الله ﷺ په کور کې به کله تر دوو میاشتو پورې اور نه بلېدو دی فرمایي ما ورته وویل : ای ترورې نو بیا مو ګذاره په څه کوله؟ دې رضی الله عنها راته وویل : په دوو تورو شیانو اوبو او خورما او د رسول الله ﷺ څه ګاونډیانو انصار وو د هغوی ګډې (مېږې) وې

نو رسول الله ﷺ ته به يې شودې را لېږلې او رسول الله ﷺ به بيا مونږ ته راکولې (متفق عليه)

## ۱۰. د خاوند سپکاوی به نه کوي

ښځه په خپلو الفاظو او خپلو کارونو د خاوند سپکاوی نه کوي بلکه ترڅو يې چې په وس پوره وي هغه ته به قدر ورکوي رسول الله ﷺ فرمايي : کله چې په دنيا کې يو نېک مسلمان ته خپله ښځه ضرر رسوي نو دجنت حوره يې ورته وايي : ضرر مه ورکوه الله ① د مړه کړه دا خو ستا سره صرف مېلمه دی زر ده چې له تا څخه به مونږ ته را بېل شي (فتح الباري)

## ۱۱. خاوند يې چې کله خپلې بسترې ته وغواړي دا به ورځي .

ښځه که هرڅومره غصه وي او که هرڅو يې زړه له خاوند نه خفه وي چې هغه يې خپلې بسترې ته ور وغواړي دا به ورځي او د ورځې نورې مسئلې به شاته پرېږدي حضرت ابي هريره ❼ روايت کړی دی هغه وايي چې رسول الله ﷺ فرمايل : **إِذَا دَعَا الرَّجُلُ امْرَأَتَهُ إِلَى فِرَاشِهِ فَأَبَتْ فَبَاتَ غَضْبَانَ عَلَيْهَا لَعَنَتْهَا الْمَلَائِكَةُ حَتَّى تُصْبِحَ**

ترجمه : کله چې يو سړي خپله ښځه خپلې بسترې ته ور وغوښته او دې له ورتلو څخه انکار وکولو نو خاوند په دې باندې په غصه شو او په همدې غصه کې يې شپه تېره کړه تر سبا پورې ملائکې پدې ښځه باندې لعنت وايي (صحيح الترمذي)

## ۱۲. خاوند ته حوصله ورکول

کله چې خاوند په تکليف کې وي دا به په خپلو الفاظو سره هغه ته حوصله ورکوي او هغه ته به ور په زړه کوي چې الله ① مالک دی او ټولې خزانې د هغه سره دي هغه به مونږ نه خرابوي او هغه به هرو مرو له مونږ سره مرسته وکوي .....



# په خاوند باندې د مېرمن حقونه

## ۱. مېرمن ته ښونه کول .

د مېرمن په حقونو کې تر ټولو لمړی او مهم حق دی که چېرته مېرمن په دیني مسئلو کې او د الله ① د حقونو په پېژندلو د شریعت په مسئلو کې کمزورې وه نو خاوند به هغې ته درس ورکوي او هغه به د دین په فرائضو باندې پوه کوي .

الله ① فرمایي :

سورة التحريم آية ٦

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا قُوا أَنفُسَكُمْ وَأَهْلِيكُمْ نَارًا وَقُودُهَا النَّاسُ وَالْحِجَارَةُ عَلَيْهَا مَلَائِكَةٌ غِلَاظٌ شِدَادٌ لَا يَعْصُونَ اللَّهَ مَا أَمَرَهُمْ وَيَفْعَلُونَ مَا يُؤْمَرُونَ.

ترجمه : ای مومنانو وساتي ځانونه او خپل اهل له داسې اور نه چې خاشاک به یې خلک او کاڼي وي په هغوی باندې سختې ملائکې ولاړې وي هغه ملائکې دا الله نا فرماني نه کوي او هغه څه کوي چې دوی ته یې امر کیږي .

په بل ځای کې الله ① فرمایي :

سورة طه آية ١٣٢

وَأْمُرْ أَهْلَكَ بِالصَّلَاةِ وَاصْطَبِرْ عَلَيْهَا

ترجمه : خپل اهل ته په مانځه باندې امر کوه او په همدې باندې قائم اوسه .

نو پدې کې لویه فایده دا وي چې کله ښځه د الله ﷻ په حقونو باندې پوه شوه بیا به د خاوند حقونه هم و پېژني او په کومه جامعه کې چې خلک او یا په کوم کور کې چې غړي یو د بل حقونه و پېژني او ساتنه یې وکوي هلته ژوند خوندور وي .

رسول الله ﷺ فرمايي :

**رَحِمَ اللَّهُ رَجُلًا قَامَ مِنَ اللَّيْلِ فَصَلَّى ثُمَّ أَيْقَظَ امْرَأَتَهُ فَصَلَّتْ فَإِنْ أَبَتْ نَضَحَ فِي وَجْهِهَا الْمَاءَ وَرَحِمَ اللَّهُ امْرَأَةً قَامَتْ مِنَ اللَّيْلِ فَصَلَّتْ ثُمَّ أَيْقَظَتْ زَوْجَهَا فَصَلَّى فَإِنْ أَبَى نَضَحَتْ فِي وَجْهِهِ الْمَاءَ. (ابو الداود و النسائي)**

ترجمه : الله ﷻ د رحم وکوي په هغه سړي باندې چې د شپې را پاڅیږي مونځ وکوي او بیا خپله ښځه هم د مانځه لپاره را ویښه کړي او که هغه د پاڅېدو نه انکار وکوي نو مخ ته یې اوبه ور وشیندي الله ﷻ دې رحم وکړي په هغه ښځه باندې چې د شپې را پاڅیږي مونځ وکوي او بیا خاوند هم را ویښ کړي او که هغه د پاڅېدو نه انکار وکوي نو مخ ته یې اوبه ور وشیندي .

۲. خاوند که له ښځې نه خفه کیږي نو د کور نه به بل چیرته نه ځي چې دا په کور کې ددې املـه پرېږدي چې دی ورته غصه شوی دی او که چیرته ورته غصه وو نو په کور کې د ننه دې اوسیږي دا په کور کې د ننه هجران په اړه الله ① فرمایي :

سورة النساء آية ٣٤

الرِّجَالُ قَوَّامُونَ عَلَى النِّسَاء بِمَا فَضَّلَ اللّهُ بَعْضَهُمْ عَلَى بَعْضٍ وَبِمَا أَنفَقُواْ مِنْ أَمْوَالِهِمْ فَالصَّالِحَاتُ قَانِتَاتٌ حَافِظَاتٌ لِّلْغَيْبِ بِمَا حَفِظَ اللّهُ وَاللاَّتِي تَخَافُونَ نُشُوزَهُنَّ فَعِظُوهُنَّ وَاهْجُرُوهُنَّ فِى الْمَضَاجِعِ وَاضْرِبُوهُنَّ فَإِنْ أَطَعْنَكُمْ فَلاَ تَبْغُواْ عَلَيْهِنَّ سَبِيلاً إِنَّ اللّهَ كَانَ عَلِيًّا كَبِيرًا.

ترجمه :سړي په ښځو باندې مسلط شوي دي ددې املـه چې الله ① ځینې په ځینو باندې غوره پیدا کړي دي او همدارنګه ددې املـه چې هغوی خپل مالونه مصرف کوي پس نېکې ښځې د خاوند په امر تلونکې وي او د خاوند په غیاب کې د هغه د مال او د خپل عزت ساتونکې وي او هغه چې تاسې وربانـدې پوه شئ چې هغوی سرکشي کوي نو نصیحت ورته وکوئ که په نصیحت سمې نه شوې نو په بستره کې ترینه جدا شئ وهل ورکړئ که یې ستاسې متابعت وکولو نو بیا ورسره د جنګ لپاره

بهانه مه لټوئ بېشکه الله ① تر هرچا لوړ او لوی ذات دی .

همدارنګه رسول الله ﷺ فرمايي :

## وَلَا تَهْجُرْ إِلَّا فِي الْبَيْتِ

يعني هجران او بېلتون مه کوه مګر په کور کې . نو که په څه خبره باندې مېړه خپلې ښځې ته غصه وي نو په کور کې دې له يوې کوټې نه بلې ته لاړ شي .

د مېرمن ددې حق له امله هغه کسان ملامت دي چې هغوی هروخت د خپلو ملګرو سره بهر په بازار کې او يا پارکونو کې او يا په حجرو کې ناست وي او مېرمن يې په کور کې يوازې پرېښي وي دوی بيا د شپې ناوخته کور ته ځي او هلته داسې ښکاره کوي چې دی زيات غصه دی او هېچاته اجازه نه ورکوي چې له ده څخه پوښتنه وکوي ته چېرته وې؟ .

## ۳. د مېرمن سره د کور په کار کې مرسته مستحب ده .

د حضرت عائشې رضی الله عنها په يو حديث کې د رسول الله ﷺ په اړه هغه مبارکه رضی الله عنها فرمايي رسول الله ﷺ به چې په کور کې وو نو د اهل په کوم کار کې به اخته وو ترديې چې اذان به وشو بيا به مانځه ته لاړو په بل روايت کې

حضرت عائشه رضی الله عنها فرمايي رسول لله به په کور کې کارونه کول خپلې جامې به يې ګنډلې د حضرت عائشې رضی الله عنها په بل روايت کې دي چې رسول الله ﷺ ستاسې په شان يو بشر وو خپلې جامې به يې پيوند کولې خپله ګډه (مېږه) به يې لوشله او د خپل ځان خدمت به يې کولو (رواه احمد)

نو چې خاوند په خپل کور کې د مېرمن سره د کور په کارونو کې مرسته وکوي طعام تيار کړي ، شربت جوړ کړي که مېرمن يې جوړه وي او که بېماره وي نو د کور په کارونو کې ورسره مرسته کول مستحب دي .

## ٤. د ښځې سره نرمي کول

خاوند بايد په ښځه باندې مهربان وي اود ښه زړه خاوند وي د ښځې په وړاندې نرم وي او که د هغې نه کومه غلطي کيږي ښځه انسان وګڼي او غلطي ورته معاف کړي رسول الله ﷺ د خپلو مېرمنو سره همداسې نرم وو کله به د بشريت د تقاضا مطابق هغوی ورته سختې خبرې وکولې لکن رسول الله ﷺ به هغوی ته هېڅ نه ويل او مېرمن به يې عاجز مخلوق ګڼلو او معاف کولې به يې يو وخت چې د حضرت عائشې رضی الله عنها او د رسول الله ﷺ په مينځ کې يوه خبره راغلې وه نو د

دوا‌ړو په مینځ کې یې فیصلې ته د حضرت عائشې رضی الله عنها والد حضرت ابو بکر صدیق ❼ راغوښتی وو نو معنی یې دا وه چې رسول الله ☸ خپلې مېرمن ته په مینه سره قناعت ورکول غوښتل او خپله خبره یې په هغه باندې نه تحمیل کوله چې کله د خبرو وخت شو رسول الله ☸ ورته وویل : ته خبره کوې او که یې زه وکوم؟ دې رضی الله عنها ورته ویل ته خبره وکوه لکن رښتیا به وایې! حضرت ابو بکر صدیق رضی الله عنه په مخ داسې څپېړه ورکړه چې په خوله کې یې وینې را پیدا شوې او ورته یې وویل ای د ځان دښمنې نو ولې رسول الله ☸ به رښتیا نه وایي ؟ دې مبارکې زر رسول الله ☸ ته ور ټوپ کړل او هغه صلی الله علیه وسلم ته یې له خپل پلار نه پناه وروړه او دهغه صلی الله علیه وسلم تر شاه کېناسته . رسول الله ☸ ورته وویل : ته مونږ ددې لپاره نه یې را غوښتی او دا مو لتا څخه نه غوښتل (رواه البخاري)

سره ددې چې پدې وخت کې یې د رسول الله ☸ سره یو ډول دعوه روانه وه لکن چې پلار یې غصه شو نو بېرته یې پناه رسول الله ☸ ته وروړه ځکه دا مبارکه رضی الله عنها پوهېده چې رسول الله ☸ بیا هم په دې باندې ځومره مهربان دی .

٥. خاوند به بیا بیا ښځې ته طلاق نه یادوي .

اکثر مېړونه چې غصه شي نو ډېر زر خپلې مېرمن ته وایي ګوره پرېږدم دې ، د پلار کره به د ولېږم ، بې کوره کوم دې او یا ورته وایي طلاق به درکړم نو ددې بد اثر دا وي چې ښځه پدې کور کې خپل ځان د کور مالکه نشي ګڼلی ځکه د هغې په دماغو کې د اخبره ځای ونیسي چې کله هم زما خاوند وغواړي نو ما لدې کور څخه بې برخې کولی شي او بل هغه کسان چې په خوله کې طلاق لفظ ډېر اړوي را اړوي نو کله د هغه څخه واقع کېدلی هم شي مسلمان او نېک خاوند باید ژبه ددې ټکي څخه وساتي چې نه د ټوکي په رقم او نه د غصې په حالت کې دده په ژبه راشي .

٦. کوم حقونه چې د خاوند په مېرمن دي هغه ټول حقونه د مېرمن په خاوند هم دي پدې اړه الله فرمایي :

سورة البقرة آية ٢٢٨

وَلَهُنَّ مِثْلُ الذى عَلَيْهِنَّ بِالْمَعْرُوفِ وَلِلرِّجَالِ عَلَيْهِنَّ دَرَجَةٌ وَاللَّهُ عَزِيزٌ حَكُيمٌ

ترجمه : بېشکه د دوی (ښځو) لپاره په تاسې باندې دومره حق دی لکه ستاسې چې په هغوی

باندې دی او د سړیو لپاره په دوی باندې لوړه درجه ده الله ① غالب او د حکمت خاوند دی .

نو چې کومې تقاضې سړی له خپلې ښځې نه کوي همداسې تقاضې هغه هم له خپل خاوند څخه لري او ما هسې د نمونې په ډول یو څو حقونه د مېرمن او یو څو حقونه د خاوند له اړخ نه ذکر کړل دا ټول نه دي ...

# طلاق

# د طلاق تعریف

طلاق په لغت کې خلاصولو ته وايي د قید لرې کولو ته وايي عرب وايي اطلقت الاسیر (بندې مې خوشې کړو) او په اصطلاح کې د نکاح د عقد ختمول او د ښځې او خاوند په مینځ کې د ښځې والي او خاوند کېدلو رابطه پای ته رسول دي یا په صریحو الفاظو سره (ته طلاقه یې، دده ښځه طلاقه ده ، ده خپله ښځه طلاقه کړه ، ما ته طلاقه کړې او داسې نور) او یا په کنایي الفاظو سره چې نیت د طلاق ورسره وي.

تاسې ولوستل چې طلاق د ښځې او خاوند په مینځ کې د نکاح د عقد ختمولو ته وايي لکن مخکې ددې چې د طلاق په مسئلو کې ور ننوزم دلته یوه یادونه کول ضروري بولم هغه دا چې ځینې خلک اوس هم پدې نظر دي چې د طلاق مشروعیت د ښځې د حقونو سلب کول دي او له هغې سره زیاتی دی پدې اړه ویل غواړم چې طلاق د هغه قادر او عالم ذات له لوري روا کړل شوی دی چې هغه د هر نفس په هر حرکت ښه پوهیږي او هغه پوازې هغه ذات دی چې د خپل مخلوق په اړه داسې فیصله کولی شي چې له هره اړخه د مصلحتونو سره برابره وي په اسلام کې چې طلاق روا ګڼل شوی دی دا روا والی د ډېرو فسادونو مخه نیسي ډېر ځله په یوه کورنۍ

کې ۲٤ ساعته د جنګ او لانجې نه بغیر نور څه نه چلیږي او ددې جنګونو له امله د ښځې او خاوند او د کورنۍ د نورو غړو ژوند لکه د بندیخانې داسې وي نو د داسې مشکلاتو د ختمولو لپاره الله ① ښکلې لار طلاق را پیدا کړې ترڅو دا کورنۍ د داسې حالت نه وباسي او بیا هم طلاق په خپله نه واقع کیږي اختیار یې د کورنۍ د غړي (خاوند) په لاس کې دی چې کله هغه ضرورت محسوس کړي نو طلاق به واقع کړي پدې اړه څو نکتو ته ستاسې پام را ګرځوم.

## د طلاق د روا والي حکمت

١. اسلام طلاق په دریو مرتبو تقسیم کړی دی او په یو ځل نه واقع کیږي تردې چې خاوند اول ځل طلاق واچوي په شخړه او لانجه کې شریک دواړه طرفونه (ښځه او خاوند) پوه شي چې مونږ څه کوو؟ او که دا شخړه همداسې روانه وساتو انجام به یې څه وي نو په خپلو خطاګانو به دوهم نظر وکوي او د اصلاح کولو کوښښ به یې وکوي او ددې اول طلاق نه وروسته چې خاوند خپلې ښځې ته په قول او یا عمل سره رجوع وکوي نو خبره ختمه شي که بیا هم د کور مشکلات روان وي نو خاوند چې دوهم طلاق واچوي نو بیا هم د ښځې او خاوند په مینځ کې صرف د عقد او نکاح نوي کول په کار وي نو چې یو ځل دواړه سره جدا شي نو کېدای شي

بيا دواړه طرفونه په خپلو نقصانونو باندې پوه شي او دواړه به رضا شي او نكاح به له سر نه كړي الله ① ددې طلاق په اړه فرمايي :

## سورة الطلاق آية ٢٢٩

## الطَّلَاقُ مَرَّتَانِ فَإِمْسَاكٌ بِمَعْرُوفٍ أَوْ تَسْرِيحٌ بِإِحْسَانٍ

ترجمه : طلاق دوه ځلې دى بيا يا په ښه توګه ساتل دي او يا په ښه توګه پرېښودل دي .

يعني طلاق صرف د مشكلاتو د حل لپاره داسې دى لكه انسان چې د بيماري نه د ځان خلاصولو په موخه يوه ډېره ترخه او بد خونده دوا خوري داسې ترخه او بد خونده دوا چې د انسان څو پورې وس وي دهغې نه ځان ساتي او چې پوه شي چې ددينه بغير مې بل حل نشته نو بيا همدا دوا وخوري او د بيماري نه ځان خلاص كړي مخكې ددې چې ددې بيماري اثر په ټول بدني كې خپور شي .

نو الله ① په څومره مهربان شكل ويلي دي چې يا په ښه توګه د خپلې مېرمن ساتل او يا په ښه توګه چې ظلم ورسره نه وي او يو پر بل زياتى نه وي پرېښودل دي .

٢ . شريعت په هغه الفاظو كې چې طلاق واقع كوي تقسيم كړى دى صريحو او كنايو الفاظو ته نو هغه چې صريح دي هغه يو څو الفاظ دي او نور كنايي الفاظ د مثاله په ډول ځه د پلار كور ته د لاړه شه ، ځه چېرته چې د زړه غواړي هلته لاړه شه او داسې نور طلاق نه واقع كوي ترڅو تلفظ

کونکی ونه وایي چې پدې سره زما نیت د طلاق وو او ترڅو چې دده ورسره د طلاق نیت نه وي نو طلاق واقع نه دی .

۳. تجربې ثابته کړېده چې انساني طبیعتونه ټول په یوه ډول نه دي ډېر فرق وي پکې او چې د دوو کسانو طبیعتونه سره برابر نشي دوی په یو ځای ژوند نشي کولی د دوی په مینځ کې به ټول عمر مشکلات وي نو که چېرته شریعت د دوی په مینځ کې لاره نه وای پرېښودې نو دوی به پخپله ځان ته تردې نه خطرناکه لاره غوره کوله چې یا به یې سرحد خیانت ته رسېدو ښځې به له خاوند سره تر خپلې وسې خیانت کولو دده په عقد کې به وه او دده په کور کې به وه له ده سره به یې خیانت کولو او یا به یې دده سره لوی خیانت کولو دده د علم نه بغیر به له بل چا سره تله یا به خاوند ددې ښځې د ساتلو سره سره له بل چا سره تعلقات ساتل او له خپلې مېرمن سره به یې خیانت کولو او یا به ددې مشکلاتو سرحد دېته رسېدو چې خاوند به مجبور کېدو چې مېرمن یې قتل کړې وای او یا ښځې خاوند قتل کړی وای او ځان یې یو له بل نه خلاص کړی وای نو شریعت ددې خطرناکو لارو ته د ضرورت د نه پیدا کېدو لپاره دا د امن نه ډکه لاره روا کړه چې طلاق دی کله چې دوی سره تنګ شي او دوی پوه شي چې مونږ په شریکه ژوند نشو کولی نو یو بل به پرېږدي.

٤. د طلاق نه مخکې د واده په کېدلو کې شریعت څو مرتبې جوړې کړې دي ددې لپاره چې خاوند په هره مرتبه د تېرېدلو په وخت کې فکر وکوي چې آیا مخکې لاړشم او کنه ، ددې مېرمن سره زه وخت تېرولی شم او کنه شریعت اول خطبه ایښې ده خاوند به د مېرمن کور ته د واده پیغام ور لېږي نو ددې پیغام لېږلو نه وړاندې به خاوند پوره فکر کوي چې آیا دا د نکاح پیغام لېږل زما لپاره ښه خبره ده او کنه مناسب کار دی او کنه ددېنه وروسته یې د نکاح د تړلو مرتبه په مخ کې شته او که چېرته د د پیغام په لېږلو پښېمان وو نو اوس به لږ نور فکر هم وکوي چې کله یې یقین وو چې دا کار غوره دی نو اوس به عقد وکوي بیا شریعت ورته د دواړوو خواوو نه حقوق تعین کړي دي چې د نکاح د بحث په آخر کې مونږ مختصره اشاره ورته وکوله چې ښځه او خاوند دواړه د یو بل حقونه وپېژني او مراعات یې وکوي بیا هم د طلاق واقع کېدو تصور له مینځه ځي او بیا لکه مخکې چې تېر شول اول ځل طلاق چې واقع شي نو هېڅوک د کور نه بهر وربانديې نه خبرېږي او په دوهم ځل لږ سخت شي چې نوې نکاح ته پکې ضرورت شي او دریم ځل یې ډېره وروستنۍ مرتبه ده چې ښځه او خاوند په مکمله توګه سره بېل شي .

٥. کله چې خاوند اول ځل طلاق واچوي نو تر اوسه پورې د خاوند پکې مکمل حق شته داسې حق

چې څوک يې هم په زور د خاوند څخه نشي اخستلی او چې خاوند ورته په قول يا عمل سره رجوع وکوي نو ټول مشکلات ختم شول الله ① فرمايي :

## سورة البقرة آية ٢٢٨

**وَالْمُطَلَّقَاتُ يَتَرَبَّصْنَ بِأَنفُسِهِنَّ ثَلاَثَةَ قُرُوَءٍ وَلاَ يَحِلُّ لَهُنَّ أَن يَكْتُمْنَ مَا خَلَقَ اللّهُ فِي أَرْحَامِهِنَّ إِن كُنَّ يُؤْمِنَّ بِاللّهِ وَالْيَوْمِ الآخِرِ وَبُعُولَتُهُنَّ أَحَقُّ بِرَدِّهِنَّ فِي ذَلِكَ إِنْ أَرَادُواْ إِصْلاَحاً وَلَهُنَّ مِثْلُ الَّذِي عَلَيْهِنَّ بِالْمَعْرُوفِ وَلِلرِّجَالِ عَلَيْهِنَّ دَرَجَةٌ وَاللّهُ عَزِيزٌ حَكُيمٌ**

ترجمه : طلاقې شوې ښځې به انتظار کوي تر دريو حيضونو پورې او که چېرته دوی په الله ① او د قيامت په ورځ ايمان لري نو دوی ته روا نه دي چې دوی هغه څه پټ کړي چې الله ① د دوی په رحمونو کې پيدا کړي دي او د دوی خاوندان ډېر مستحق دي کچېرته دوی د اصلاح اراده لري او د دوی لپاره په خاوندانو باندې همدومره حقونه دي لکه د خاوندانو چې په دوی باندې دي او شته سړيو ته په دوی باندې (د بهترې) يوه درجه او الله ① غالب او دحکمت خاوند دی.

٦. د اسلام دين د دينونو په مينځ کې يوه متوسطه لاره ده نه پکې مطلق پاتې دی لکه په

یهودیت کې او نه پکې حرام دی لکه په عسائیت کې بلکه روا کړل شوی دی .
۷. څرنګه چې نارینه په واده باندې مصرفونه کړي وي مهر او نور مالي مصارف یې برداشت کړي وي او که چېرته ددې ښځې سره د نکاح تعلق ختم کړي نو ورته اسانه به نه وي چې بله پیدا کړي او بیا چې پېدا یې کړي هم هغې ته به مهر ورکوي او نور مصارف به وربانديې کوي نو ددې امله به سړی ډېر کوښښ کوي چې د نکاح تعلق له موجوده ښځې سره وساتي ددې امله د طلاق حق سړي ته په لاس کې ورکړل شوی دی او ښځه څرنګه چې هرځل نکاح کوي نو دا به مهر اخلي او داسې نورې تحفې به اخلي نو که هغې ته په لاس کې د طلاق حق ورکړل شوی وای کېدای شي هغې زر واقع کړی وی همدارنګه تجربې ثابته کړېده چې ښځه تر سړي نه د لږ صبر خاونده وي او په احساساتو کې زر راځي او د ښځې په نسبت سړي تر ډېره حده پورې برداشت او حوصله لري نو سړي ته په لاس کې د طلاق اختیار ورکول د مصلحت سره برابر دي .
۸. کله کله طلاق ته د ښځې ضرورت کیږي هغه له خاوند نه غواړي چې دېته طلاق ورکړي او کله قاضي د دوی په مینځ کې طلاق واقع کوي او یا د خاوند څخه غواړي چې دېته طلاق ورکړي کل چې هغه په څه ډول د مېرمن د حقونود پوره کولو نه عاجز او قاصر وي .

۹. لږ وروسته به راشي چې طلاق داسې عام هم نه دی پاتې هر ډول طلاق د شریعت له نګاه نه غوره کړل شوی عمل هم نه دی طلاق په مختلف ډوله دی او اصل په طلاق کې حرمت دی ترڅو چې ضرورت ورته نه وي نو حرام دی لکن وروسته شریعت داسې حالتونه بیان کړي دي چې د هغې حالتونو له امله کله مباح، کله مستحب او کله بیا مکروه وي نو چې کله هم روا کیږي د حالاتو د تقاضا له امله روا کیږي .

۱۰. د طلاق نه وروسته هم شریعت دهغې د عدت تر تېرېدلو پورې عزت ورکړی دی خاوند به وربانديې مصرف کوي که ماشوم یې په غېږ کې وو دېته به دهغې په خدمت هم پیسې ورکول کیږي او هغه ماشوم ته چې شودې ورکوي د خاوند نه د هغې په بدل کې هم پیسې غواړي او خاوند یې د شریعت له نګاه نه مجبور دی چې هغه مصرف ومني او ورېې کړي.

## د طلاق حکم .

ترڅو پورې چې ورته ضرورت نه وي د طلاق د اچولو نه منع شویده ځکه په دې کې یو نفس (د زوجې نفس) ته بېغیر د کومې خطایي نه ضرر ور رکول دي او شریعت کله هم د داسې کار اجازه نه ورکوي .

همدارنګه مخکې تېر شول چې نکاح د الله ① له نعمتونو څخه ده او بغیر د ضرورت نه طلاق ددې نعمت کفران او نا شکري ده کومه چې د اسلام له نظره حرامه ده .

## د طلاق ارکان

د طلاق رکنونه درى دي :

١. طلاق اچونکى

دا به مکلف انسان وي .

٢. هغه ښځه چې طلاق ورته اچول کیږي .

٣. د طلاق صریح لفظ او یا کنایي لکن د طلاق د نیت سره به موجود وي .

# د طلاق قسمونه

طلاق په دوه ډوله دی

۱. سني

۲. بدعي

طلاق سني په دوه ډوله دی .

## ۱. طلاق سني احسن

طلاق سني احسن دادی چی خپله مېرمن په یو طلاق په داسې طهر کې ( د حیض نه په وروسته پاکي کې) طلاقه کړي چې ده ورسره د حیض نه وروسته جماع نه وي کړې او بیا یې پرېږدي چې عدت یې تېر شي او یا حامله وي چې حمل یې ښکاره شوی وي .

## ۲. طلاق سني حسن

هغه طلاق دی چې خپلې ښځې ته په داسې طهر ( دحیض نه وروسته پاکې) کې یو طلاق ورکړي په بل طهر کې بل ورکړي او په بل طهر کې بل طلاق ورکړي چې دری پوره شي ښځه په کامله معنی ددې خاوند څخه اجنبیة شي (محیط السرخسي)
طلاق بدعي هم په دوه ډوله دی

۱. بدعي د شمار له امله

۲. بدعي د وخت له امله .

۱. بدعي د عدد له امله هغه طلاق وي چې په يو طهر کې په يو وخت کې په يو ځل په يوه جمله ورته درى طلاقونه ورکړي او يا ورته په يو ځاى په د ريو جملو ويلو سره ورته درى طلاقونه ورکړي او يا په يو طهر کې ورته دوه طلاقونه په يو ځاى ورکړي نو چې داسې وکوي طلاق يې واقع دى او طلاق اچونکى ګنهګار دى .

۲. دوهم ډول بدعي هغه طلاق دى چې داسې ښځه چې ده ورسره جماع کړې وي د حيض په حالت کې او يا په داسې طهر کې چې ده ورسره جماع کړې وي طلاقه کړي نو که داسې يې وکول هم طلاق واقع دى لکن بيا هم دده لپاره مستحب ده چې رجوع ورته وکوي بلکه وربانديې واجب ده چې رجعت وکوي (الکافي)

## د چا طلاق واقع کيږي؟

⇦ هر خاوند چې عاقل او بالغ وي طلاق يې واقع کيږي نو د ماشوم طلاق نه دى صحيح او همدارنګه د ليوني طلاق نه واقع کيږي .

⇦ که څوک په ټوکه کې او يا په مسخرو کې طلاق ورکړي نو طلاق واقع کيږي همدارنګه که د چا نه خبر غلطه شوه (ده يو څه ويل او مېړمن ته

يې په خوله راغلل چې ته طلاقه يې) بيا يې هم طلاق واقع دی (محيط السرخسي)

⇦ همدارنګه که چا ښځې ته په عربي وويل (انت طالق) يعني ته طلاقه يې او دی ددې خبرې په معنی نه پوهېدو بيا هم طلاق واقع دی همدارنګه که په هره ژبه يې ورته وويل او دی د هغې ژبې ددې جملې په معنی نه پوهېدو نو دا نه پوهه د طلاق واقع کېدل نه منع کوي (عالمګيري)

⇦ د ماشوم طلاق نه واقع کيږي اګر که هغه هرڅو هوښيار هم وي ، همدارنګه د ويده سړي طلاق ، د لېوني طلاق او د هغه کس طلاق چې هغه بې هوشه وي او نه پوهېږي چې څه وايي نه واقع کيږي (فتح القدير)

⇦ که په خوب کې څوک غږېدل او ښځې ته يې طلاق ورکړو بيا چې را وېښ شو ښځې ته يې ويل په خوب کې مې طلاقه کړې بيا يې هم طلاق نه دی واقع او که يې ورته وويل چې هماغه د خوب طلاق مې صحيح دی او يا يې ورته وويل چې هماغه طلاق زه عملي کوم نو بيا طلاق واقع دی . (عالمګيري)

⇦ که ماشوم طلاق ورکړو نو طلاق نه دی واقع او چې کله بالغ شو اوس يې وويل چې هماغه د ماشوم توب طلاق واقع کوم نو نه طلاقيږي ترڅو يې د بلوغ نه وروسته بيا طلاقه نه کړي .

⇦ د طلاق لپاره وکيل نيول هم صحيح دي چې څوک وکيل ونيسي چې دده ښځه طلاقه کړي او هغه يې طلاقه کړي نو طلاق واقع دی او که څوک د طلاق لپاه ماشوم وکيل کړي او هغه ماشوم طلاق واقع کړي نو دا طلاق صحيح دی (التتارخانية)

⇦ هغه کس چې د شرابو يا بل کوم مخدر شي د خوراک يا څښاک نه نشه شوی وي دهغه طلاق واقع کيږي (محيط)

⇦ هغه کس چې مجبور کړل شي او په زور باندې شراب ورباندې وڅښل شي او بيا نشه شي طلاق واچوي پدې کې اختلاف دی لکن صحيح خبره داده لکه په ده چې حد لازم نه دی نو همداسې يې طلاق او نور تصرفات نافذ نه دي (فتاوی قاضي خان)

⇦ هغه کس چې په سر باندې ضربه وخوري او ددې سره يې عقل کار پرېږدي پدې وخت کې يې که طلاق واچولو طلاق يې نه واقع کيږي (فتاوی قاضي خان)

# د طلاق واقع کېدل

لکه مخکې چې تېر شول د طلاق لپاره دوه ډوله الفاظ دي يو ډول صريح الفاظ دي چې هغه په هر صورت کې طلاق واقع کوي او بل ډول کنايي الفاظ دي د هغوی سره چې د طلاق نيت ملګری نه شي طلاق نه واقع کوي .

# د طلاق صريح الفاظ

⇦ صريح الفاظ د مثال په ډول لکه چې ورته ووايي : ته طلاقه يې ، اى طلاقې، ما ته طلاقه کړې پدې الفاظو سره يو رجعي طلاق واقع کيږي ددې لفظ سره نيت کار نه کوي اګر که ده د ډېرو نيت کړى وو بيا هم صرف يو طلاق واقع کيږي .

⇦ که يې ورته ويل ته طلاقه يې ، ته طلاقه يې ، ته طلاقه يې نو پدې سره درى طلاقه واقع کيږي او ښځه په مکمله توګه جدا کيږي او که يې ويل چې په اول طلاق سره زما مطلب طلاق وو او په دوو نورو سره زما مطلب صرف دا وو چې دا په ښه توګه پوه کړم او په هغو وروستنيو دوو سره مې د بل طلاق اراده نه وه کړې نو که په قضاء کې دعوه وه نو قاضي دده خبره نه مني او دده او د الله ① په مينځ کې يې دا خبره کار کوي .

⇦ هغه مېرمن چې نکاح ورسره شوې وي او جماع ورسره نه وي شوې نو د هغې په حق کې يو طلاق طلاق بائن دى او هغه په يوه طلاق سره له خاوند څخه جدا کيږي .

⇦ که چا ويل ددې کلي ښځې ټولې طلاقې دي او دده ښځه هم په همدې کلي کې وه نو دده ښځه

طلاقه ده همدارنګه که یې د کلي په ځای ښار او یا ملک یاد کړو (فتاوی قاضي خان)

⇦ که خاوند خپلې ښځې ته وویل : طلاق دې دروا خله هغې ورته وویل وامې خستو نو طلاق واقع دی . (عالمګیري)

⇦ که چا خپلې ښځې ته ویل غوښتل (ته طلاقه یې په دریو طلاقونو سره) نو صرف دومره یې وویل ته طلاقه یې مخکې ددې چې ووایي (په دریو طلاقونو سره) نو چا یې په خوله لاس ور کېښود او منع یې کړو نو صرف یو طلاق واقع کیږي . (محیط السرخسي)

⇦ که یې ورته وویل چې ته سبا ته طلاقه یې نو چې کله سحر را وخیږي نو ښځه طلاقه کیږي او که یې وویل چې زما مطلب دا وو چې د سبا په آخر کې نو دده دا نیت به منل کیږي . (عالمګیري)

⇦ که یې ورته وویل چې د یکشنبې په ورځ طلاقه یې نو راتلونکې یکشنبې به ترینه مراد کیږي .

## د طلاق کنایي الفاظ

⇦ کنایي الفاظ هغه دي چې نیت ورسره وي طلاق وربانديې واقع کیږي د مثال په ډول چې ورته ووایي ستا واک ستا په خپل لاس کې دی نو که یې نیت د طلاق وو پدې جمله سره طلاق واقع

کیږي او که یې نیت د طلاق نه وو نو بیا نه واقع کیږي .

⇦ همدارنګه ورته ووایي ته خپل عدت تېر کړه ، لما څخه بهر شه، لما څخه پاڅېږه ، ټکرۍ په سر کړه ، لما څخه پرده وکوه ، حرامې ، لما څخه بائنه شوې دا ټول الفاظ که پداسې حالت کې ورته ووایي چې دواړه په ښه سم د خوشحالی په حالت کې وي نو ترڅو چې نیت ورسره نه شي نو طلاق نه واقع کیږي .

# په لیک کې طلاق

⇦ که په لیک کې ښځې ته طلاق ورولېږي نو هم طلاق واقع کیږي او ددې دوه صورتونه دي یو دا چې په خط کې صرف ورته ولیکي (ته لما څخه طلاقه یې) نو د کومې ورځې نه چې دا خط لیکل شوی دی ښځه طلاقه شویده او د همدې ورځې نه به خپل عدت شماري او که یې ورته ولیکل (کله چې زما دا خط تاته ورسیږي نو ته طلاقه یې) پدې صورت کې ترڅو چې دیته خط نه وي رسېدلی دا طلاقه نه ده او چې کله خط ورته ورسیږي نو د هغې ساعت نه دا طلاقه ده او عدت یې هم له همدې ساعت نه حسابیږي . (عالمګیري)

⇦ او که په لیک کې یې ورته ولیکل (ته طلاقه یې ان شاء الله) نو طلاقه ده او که یې ان شاء الله ترینه جدا لیکلي وو بیا طلاقه نه ده . (عالمګیري)

⇦ که یې په خط کې ورته لیکلي وو چې کله زما دا خط تاته ورسیږي نو ته طلاقه یې دا خط د ښځې پلار ته ورسېدواو هغه دا خط وشکولو که د ښځې پلار د ښځې د ټولو کارونو متصرف وو او د هغې لپاره یې کار کولو نو طلاقه ده او که هغه ددې د کارونو متصرف نه وو نو بیا نه ده طلاقه .

- او که يې پلار د کارونو متصرف نه وو لکن د شکولو نه وروسته يې خط دېته وروړو نو که هغه خط لوستل کېدو نو بيا هم دا طلاقه ده او که نه لوستل کېدو بيا طلاقه نه ده (فتاوى قاضي خان)
- که څوک مجبور کړل شو چې طلاق واچوي نو د امام ابي حنيفه رحمه الله په مذهب بيا هم طلاق واقع کيږي لکن که چا څوک مجبور کړل وليکه دا چې فلانۍ د فلاني لور زما فلاني د فلاني له زوى نه طلاقه ده نو ده دهغه زور له امله وليکل نو ښځه وربانديې طلاقه نه ده (فتاوى قاضي خان)
- که چا يو خط وليکلو او په هغه کې يې خپلې مېرمن ته وليکل چې ته طلاقه يې بيا يې بل چاته وويل چې ددې نه يو بل نقل راته وليکه نو هغه کس پدې خط کې ټول الفاظ په بل خط کې هم نقل کړل او دواړه يې بېل بېل ښځې ته را ولېږل نو چې کله دا دواړه مېرمن ته را ورسېدل نو مېرمن په دوو طلاقونو سره طلاقه شوه په قضاء کې به همداسې فيصله کيږي .



# مېرمن ته د طلاق حق ورکول

⇦ که چا خپلې مېرمن ته وویل ته خپل ځان طلاق کړه نو پدې سره طلاق نه واقع کیږي لکن صرف دومره خبره ده چې د طلاق حق اوس ښځې ته ورکړل شو او هغه مخکې لدې چې ددې مجلس څخه پاڅیږي د خپل ځان د طلاقولو حق لري اګر که دا مجلس یوه ورځ او یا دوه ورځې اوږد شي بیا هم د طلاق حق اوس د مېرمن په لاس کې دی او د خاوند لپاره دا حق هم نشته چې اوس دا حق له مېرمن څخه بېرته واخلي همدرانګه که خاوند له مجلس څخه پاڅېدو لکن ښځه تراوسه په مجلس کې وه بیا هم دا چې ترڅو پورې ناسته ده د طلاق اختیار یې په لاس کې دی (الجوهرة النیرة)

⇦ او که ددې مجلس نه پاڅېده او یا یې په کوم کار کې شروع وکوله د سر ګمنځ کول یې شروع کړل ، خوراک یې شروع کړو ، ویده شوه له دې مجلس نه په کوم کار پسې پاڅېده نو دا اختیار یې له لاس نه ووتلو (السراج الوهاج)

⇦ که په دې مجلس کې یې اوبه وڅښلې نو بیا یې هم صرف د اوبو په څښلو دا حق د طلاق له دې څخه نه ساقط کیږي د طلاق حق یې تر اوسه پورې لا پاتې دی همدارنګه که یې لږ شی کومه میوه او یا بل شی وخوړل نو تر اوسه پورې یې اختیار ساقط نه دی (التبیین)

⇦ که دې وويل چې زما ګواهان په کار دي ورشه ګواهان راوله او يا مې پلار راته راوله چې زه ورسره مشوره وکوم او دا کېناسته چې هغوی راشي انتظار يې ويسته نو بيا هم تر اوسه پوې ددې اختيار په لاس کې دی همدارنګه که ناسته وه تکيه يې وکوله او يا په کېناستو باندې ويده شوه نو پدې کارونو باندې يې اختيار له لاسه نه وزي (عالمګيري)

## ايــلاء

ايلاء دېته وايي چې څوک د خپلې مېرمن څخه قسم وکوي چې دی به هغې ته نه ور نږدې کيږي نو که تر څلورو مياشتو پورې ور نږدې نه شوو نو د دوی په مينځ کې يو طلاق واقع شو او که پدې څلورو مياشتو کې ور ته نږدې شوو نو طلاق نه واقع کيږي لکن دی په قسم کې حانث شو د قسم کفاره به ورکوي چې لسو مسکينانو ته خوراک ورکول او يا درې روژې نيول او يا يو غلام ازادول دي .

ﷲ ① د ايلاء په اړه په قران کريم کې فرمايي :

سورة البقرة آية ٢٢٦ و ٢٢٧

لِلَّذِينَ يُؤْلُونَ مِنْ نِسَائِهِمْ تَرَبُّصُ أَرْبَعَةِ أَشْهُرٍ فَإِنْ فَاءُوا فَإِنَّ اللَّهَ غَفُورٌ رَحِيمٌ وَإِنْ عَزَمُوا الطَّلَاقَ فَإِنَّ اللَّهَ سَمِيعٌ عَلِيمٌ .

ترجمه : هغه کسان چې خپلو مېرمنو ته د نزدیکت نه قسم وکوي په هغوی باندې دی انتظار د څلورو میاشتو که پدې زمانه کې د خپل قسم نه رجوع وکوي نو الله ① بښونکی او مهربان دی او که يې د طلاق اراده وکوله نو بيا هم الله ① اوري او پوهيږي .

د ايلاء لپاره هم الفاظ دي د مثال په توګه ورته يې وويل والله زه تاته نه در نږدې کيږم ، زه لتا سره جماع نه کوم، زه تا نه وطی کوم ، زه لتا نه د جنابت غسل نه کوم ، زه ستا بکارت له مينځه نه وړم نو پدې ټولو الفاظو سره ايلاء کيږي (محيط السرخسي)



# خلع

خلع هم د نكاح ختمول دي لكن پدې ختمولو كې د
خلع لفظ استعمال شوى وي او خلع دېته وايي چې
ښځه له خاوند څخه وغواړي چې دېته طلاق وركړي
او چې خاوند طلاق ته رضا نه وي نو هغه د مېرمن
څخه څه شى وغواړي او د هغې په بدل كې مېرمن
ته طلاق وركړي او هغه دده څخه ازاده شي په خلع
سره داسې طلاق واقع كيږي چې دهغې نه وروسته
ښځه او خاوند يو له بل نه جدا وي يعنې خاوند
نشي كولى د خلع نه وروسته مېرمن ته رجوع وكوي
ترڅو چې هغه رضا نه وي چې له ده سره بېرته
نكاح وكوي.

الله ① د خلع په اړه په قران كريم كې هم فرمايلي
دي چې كله ښځه او خاوند پدې پوه شي چې زمونږ
ژوند نه تيريږي نو بيا گناه نشته كه ښځه د
خاوند څخه وغواړي چې دې ته طلاق وركړي او
خاوند له مېرمن څخه څه مال وغواړي او دواړه
اړخونه په يو خاص شي او يا مبلغ باندې سره
رضا شي .

الله ① فرمايي :

## سورة البقرة آية ٢٢٩

فَاِنۡ خِفۡتُمۡ اَلَّا يُقِيۡمَا حُدُوۡدَ اللّٰهِ ؕ فَلَا جُنَاحَ عَلَيۡهِمَا فِيۡمَا افۡتَدَتۡ بِهٖ ؕ
تِلۡكَ حُدُوۡدُ

اللّٰہِ فَلَا تَعۡتَدُوۡہَا ۚ وَ مَنۡ یَّتَعَدَّ حُدُوۡدَ اللّٰہِ فَاُولٰٓئِکَ ہُمُ الظّٰلِمُوۡنَ (۲۲۹)

ترجمه : که تاسې و ډار شوی چې تاسې به د الله ① حدود قائم نشي کړلی نو بیا په تاسې ګناه نشته په هغه څه کې چې مېرمن یې خاوند ته ورکوي (د ځان د ازادولو لپاره) دا د الله ① حدونه دي تاسې ددې څخه تجاوز مه کوئ څوک چې د الله ① د حدونو څخه تجاوز وکوي هغوی ظالمان دي .

په خلع کې به مېرمن خاوند ته څه شی ورکوي؟

کوم شی چې د ښځې مهر صحیح کېدلی شي هغه په خلع کې هم ورکول کېدلی شي (الهدایة)



# په مال باندې طلاق

که چېرته خاوند مېرمن ته وېل چې زه به تاته دومره مال درکړم او تا به طلاقه کړم نو دا طلاق هم صحيح دی او څومره مال چې ددې لپاره ياد کړل شوی وو هغه به ورکوي او طلاق هم طلاق بائن دی (الهداية)

# ظهار

ظهار دېته وايي چې څوک د خپلې مېرمن ټول ځان او يا کوم مهم اندام چې کله هغه ياد کړل شي مراد ترينه ټول بدن وي د داسې چا سره مشابه کړي چې هغه دې سړي ته په حرمت ابدي سره حرامه وي که هغه نسبي حرمت وي او يا رضاعي او يا د خسرګنۍ حرمت وي (فتح القدير)

د ظهار په اړه الله ﷻ فرمايي :

سورة المجادلة آية ٢.

اَلَّذِيْنَ يُظٰهِرُوْنَ مِنْكُمْ مِّنْ نِّسَآئِهِمْ مَّا هُنَّ اُمَّهٰتِهِمْ ؕ اِنْ اُمَّهٰتُهُمْ اِلَّا الّٰٓئِ وَلَدْنَهُمْ ؕ وَ اِنَّهُمْ لَيَقُوْلُوْنَ مُنْكَرًا مِّنَ الْقَوْلِ وَ زُوْرًا ؕ وَ اِنَّ اللّٰهَ لَعَفُوٌّ غَفُوْرٌ (٢) وَ الَّذِيْنَ يُظٰهِرُوْنَ مِنْ نِّسَآئِهِمْ ثُمَّ يَعُوْدُوْنَ لِمَا قَالُوْا فَتَحْرِيْرُ رَقَبَةٍ مِّنْ قَبْلِ اَنْ يَّتَمَآسَّا ؕ ذٰلِكُمْ تُوْعَظُوْنَ بِهٖ ؕ وَ اللّٰهُ بِمَا تَعْمَلُوْنَ خَبِيْرٌ (٣) فَمَنْ لَّمْ يَجِدْ فَصِيَامُ شَهْرَيْنِ

مُتَتَابِعَيۡنِ مِنۡ قَبۡلِ اَنۡ يَّتَمَآسَّا ۚ فَمَنۡ لَّمۡ يَسۡتَطِعۡ فَاِطۡعَامُ سِتِّيۡنَ مِسۡكِيۡنًا ؕ ذٰلِكَ لِتُؤۡمِنُوۡا بِاللّٰهِ وَ رَسُوۡلِهٖ ؕ وَ تِلۡكَ حُدُوۡدُ اللّٰهِ ؕ وَ لِلۡكٰفِرِيۡنَ عَذَابٌ اَلِيۡمٌ (۴)

ترجمه : هغه کسان چې ظهار کوي له خپلو مېرمنو څخه دا مېرمنې د دوی موراني نه دي بېشکه د دوی موراني هغه دي چې دوی يې زېږولي دي بېشکه دوی داسې خبره کوي چې هغه د عقل نه لرې ده او دروغ دي او الله ① معاف کونکی او بښونکی دی هغه کسان چې له خپلو ښځو څخه ظهار کوي او بيا بېرته له خپلې خبرې نه ګرځي نو مخکېددې چې خپلې مېرمن ته نېږدې شي يو غلام به ازادوي دا داسې خبرې دي چې تاسې ته يې نصيحت کيږي الله ① په هغه څه چې تاسې يې کوئ ښه خبر دی او که چا يو غلام پيدا نه کړو ( او يا يې دومره پيسې نه درلودې چې يو غلام وربانديې واخلي ) نو بيا شپېتو مسکينانو ته خوراک ورکول دي دا حکم تاسې ته ددې لپاره کيږي چې تاسې د الله ① او د هغه د رسول متابعت وکوئ او د الله ① تعين کړل شوي حدونه دي د کافرانو لپاره دردناک عذاب دی .

⇦ په ښځه کې دا شرط دی چې دا به د ظهار کونکي سړي مېرمن وي او په سړي کې دا شرط دي چې هغه به ذمي، ماشوم او لېونی نه وي (فتح القدير)

⇦ ظهار صرف هلته صحيح کیږي چې د ښځې تشبیه د داسې ښځې سره ورکړي چې هغه په ده باندې د ټول عمر لپاره حرامه وي لکه نسبي مور، خور لور یا رضاعي لکه رضاعي خور یا مور او یا د خسر ګنۍ له وجې محرمه لکه خواښې ... او که د داسې چا سره یې تشبیه ورکړه چې هغه په ده باندې ابدي حرامه نه وه بلکه موقته وربانديې حرامه وه لکه د مېرمن خور او داسې نور نو بیا دا ظهار نه دی .

⇦ د ظهار رکن هغه جمله ده چې په کومې سره ظهار کیږي د مثال په ډول خپلې مېرمن ته یې وویل :

ته په ما باندې لکه زما د خپلې مور شا داسې یې او یا دیته ورته جمله یې استعمال کړه (النهایة)

⇦ که یې ورته وویل چې ستا سر په ما باندې لکه زما د مور شا داسې ده یا ستا مخ په ما باندې لکه زما د مور شا داسې ده یا ستا غاړه یا ستا فرج نو پدې ټولو جملو سره ظهار کیږي .

# د ظهار کفاره

نو چې کله ظهار واقع شي نو بيا د خاوند لپاره دوه لارې دي .

١. دا ښځه به نوره په ده باندې حرامه وي دی به هغې ته نيزديکت نشي کولی نو پدې صورت کې صرف همدا خبره ده چې ښځه ورته حرامه شوه نور وربانـدې کوم شی واجب نه دي .

٢. دوهم صورت يې دادی چې دی نه غواړي خپله ښځه پريږدي نو چې کله دې خپلې ښځې ته ور نيږدې کېدل غواړي نو د ظهار کفاره به ورکوي او که د کفارې څخه نه وو خبر بيا چا ورته وويل چې اوس خو په تا باندې کفاره واجب ده نو بيا يې عزم وکولو چې نه ور نيږدې کيږم نو بيا هم وربانـدې کفاره نشته .

د ظهار کفاره يو غلام ازادول که ددې وس نه وي بيا دوه مياشتې مسلسلې روژه نيول او که ددې وس يې نه وي بيا شپېتو مسکينانو ته خوراک ورکول دي او دا هرڅه تر جماع وړاندې لازم دي .

# لعان

لعان دېته وايي چې څوک له ځان سره ګواه ونلري او په خپله مېرمن باندې د زنا تور ولګوي نو بيا به دهغې سره يو ځاى ته حاضرېږي او دواړو ته به قسم ورکول کيږي .

الله ﷻ د لعان په اړه فرمايي :

## سورة النور آية ٦ـ٩

وَ الَّذِيْنَ يَرْمُوْنَ اَزْوَاجَهُمْ وَ لَمْ يَكُنْ لَّهُمْ شُهَدَآءُ اِلَّاۤ اَنْفُسُهُمْ فَشَهَادَةُ اَحَدِهِمْ اَرْبَعُ شَهٰدٰتٍۭ بِاللّٰهِ ۙ اِنَّهٗ لَمِنَ الصّٰدِقِيْنَ (٦) وَ الْخَامِسَةُ اَنَّ لَعْنَتَ اللّٰهِ عَلَيْهِ اِنْ كَانَ مِنَ الْكٰذِبِيْنَ (٧) وَ يَدْرَؤُا عَنْهَا الْعَذَابَ اَنْ تَشْهَدَ اَرْبَعَ شَهٰدٰتٍۭ بِاللّٰهِ ۙ اِنَّهٗ لَمِنَ الْكٰذِبِيْنَ ۙ(٨) وَ الْخَامِسَةَ اَنَّ غَضَبَ اللّٰهِ عَلَيْهَاۤ اِنْ كَانَ مِنَ الصّٰدِقِيْنَ (٩)

⇦ ترجمه : هغه کسان چې په خپلو مېرمنو د زنا تور ولګوي او بيا د خپل ځان نه بغير ورسره بل ګواه نه وي نو هغه يو به څلور ځله د الله ﷻ د نوم سره ددې ګواهي ورکوي چې دى پدې تور کې رښتونى دى او پنځم ځل به وايي چې که دى دروغجن وي په ده دې د الله ﷻ لعنت وي او دده مېرمن به هغه وخت د زنا له حد نه

خلاصیږي چې هغه څلور ځله د الله ① د نوم سره ګواهي ورکړي چې ددې خاوند دروغ وایي او پنځم ځل ګواهي ورکړي چې که ددې خاوند رښتیا وایي نو په دې باندې د الله غضب وي .

⇦ چا چې څو ځله په خپله مېرمن باندې تور ولګولو نو بیا هم صرف یو ځل لعان ورسره کول دي هغه ورسره نه تکرار کیږي (المبسوط)

⇦ که څوک په اجنبي ښځه باندې د زنا تور ولګوي نو بیا به یا ګواهان وړاندې کوي چې ثابته کړي هغې ښځې زنا کړېده او کنه نو په ده باندې به د قذف حد جاري کیږي نو چې څوک په خپله مېرمن دا تور ولګوي نو له هغې سره به لعان ته حاضریږي .

⇦ که خاوند یې په ښځه د داسې زنا تور ولګولو چې په کونکي یې حد نه واجب کیږي نو هلته لعان هم نه کیږي لکه ورته یې وویل چې ته په شبه سره وطی شوې وې او داسې نور ..

⇦ که یې ورته وویل ای زانیې.. تا خو زنا کړېده .. ما ته ولیدې چې تا زناه کوله او داسې نور صریح الفاظ نو د دوی په مینځ کې به لعان کیږي .

⇦ د امام ابي حنیفه رحمه الله په مذهب چې کله لعان وشي دهغه نه وروسته به ښځه او خاوند

سره بېل کړل شي او دا لعان د دوی په مینځ کې بائن طلاق دی . (البدائع)

⇦ او قاضي به هغه وخت پدې معامله کې دخل کوي چې کله دعوه وشي او که خاوند ښځې ته ویل چې ته زانیه یې لکن ښځې یې قاضي ته دا مسئله پورته کړې نه وه نو قاضي به په خپل صلاحیت دوی لعان ته نه راغواړي .

⇦ که خاوند لعان ته د حاضرېدلو څخه انکار وکولو نو حکومت به یې تر هغه وخت پورې بندي کړي چې یا د خپل ځان تکذیب وکوي او ووایي چې ما درواغ ویل او یا له خپلې مېرمن سره لعان ته حاضر شي . (الهدایة) نو که خاوند وویل چې ما دروغ ویل نو په ده باندې به د قذف حد (اویا (۷۰) دورې) اجراء کړل شي (السراج الوهاج)

⇦ او که ښځې د لعان څخه انکار وکول او سړي لعان وکولو نو دا به بندي کړله شي ترڅو لعان کولو ته حاضره شي او یا ووایي چې هو ما زنا کړېده زما خاوند رښتیا وایي نو پدې صورت کې به وربانډې د زنا حد جاري کېږي.

⇦ د ښځې لپاره غوره خبره داده چې دا خبره قاضي ته پورته نه کړي او کله یې چې قاضي ته پورته کړي هم غوره خبره داده چې قاضي ورته ووایي چې ددې خبرې نه تېره شه که دې وویل چې صحیح ده ترینه تېره یم نو خبره ختمه شوه او که یې وویل تېره یم لکن بېرته یې وویل

چې نه زه ترېنه نه تېرېږم بیا هم ددې حق شته چې یو ځل د تېرېدلو نه وروسته بېرته لعان ته را وګرځي ګناه وربانديې نشته .

## لعان به څنګه کیږي ؟

لږ مخکې یې په تفصیل سره د آیت په ترجمه کې طریقه تېره شوه یوځل یې بیا په ساده ټکو کې را تکرار کوم.

لعان به اول د خاوند نه شروع کیږي هغه به څلور ځله ګواهي ورکوي او په هر ځل کې به وایي :

زه په الله ① ګواهي ورکوم چې ما ددې په اړه ویلي چې دا زانیه ده زه پدې خبره کې رښتونی یم.

او په پنځم ځل به وایي : که زه به په دې پسې دروغ وایم پر ما د د الله ① لعنت وي . په هر ځل ګواهي کې به ښځې ته اشاره کوي .

بیا به ښځه څلور ځله ووایي :

زه په الله ① ګواهي ورکوم چې ده په ما باندې د زنا تور لګولی دی دروغ وایي .

او په پنځم ځل به ووایي چې په دې باندې د الله ① غضب وي که به هغه رښتیا وایي . (الهدایة)

د لعان په وخت کې به ښځه او خاوند دواړه هلته حاضر وي او مسحب ده چې ښځه ولاړه وي واجب نه ده (البدائع)

چې کله لعان وشي نو قاضي به د دوی دواړو په مینځ کې په جدايي فیصله وکوي او که دوی بیا هم له قاضي نه غوښتل چې دی د نه سره جدا کوي نو قاضي به د دوی خبره نه مني او سره بېل به یې کړي او همدا به د دوی په مینځ کې طلاق شي .

# العنین

⇦ عنین هغه کس وي چې د کوم عذر یا عمر زیات والي له امله د خپلې مېرمن جنسي حق نشي ور پوره کولی او په جماع باندې نه توانیږي او یا د ځینو ښځو سره په جماع قادر او ځینو سره نه وي او یا د کونډو سره په جماع قادر او د پېغلو سره نه وي ددې لامل پیدائشي هم کېدای شي کوم ډول کمزوري هم کېدای شي د عمر زیاتوالی هم او د څه سحر او جادو اثر هم کېدلای شي لکن چې دی کومو ښځو ته په نزدیکت قادر نه وي د هغه مېرمنو په حق کې دی عنین دی (النهایة)

⇦ هغه کس چې خاص اندام یې پرې شوی وي نو چې کوم پاتې وي دهغه دخول وربانديې لازم دی که هغه داخلیږي نو بیا هم عنین نه دی او چې د کوم سري حشفه (د ذکر سر) داخلیږي نو دا هم په عنین کې نه حسابیږي (البحر الرائق)

⇦ هغه مېرمن چې خاوند يې عنين وي هغه دعوه کولی شي قاضي به دا له خپل خاوند څخه جدا کوي او طلاق به ورته ترينه اخلي .

⇦ کله چې د عنين مېرمن دعوه وکوي قاضي به يې د خاوند نه پوښتنه کوي چې آيا تا دې مېرمن ته نېږدېکت کړی دی؟ که ده اقرار وکولو چې دده مېرمن رښتيا وايي ما دېته نزديکت نه دی کړی قاضي به ده ته د يو کال مهلت ورکړي (ځکه کله انسان په مختلفو فصلونو کې بدلېږي او د ګرمی او يخنی تاثير وربانديې راځي نو پرېږده چې يو کال پرې تېر شي څلور واړه فصلونه به تجربه کړل شي) نو که بيا هم په جماع قادر نشو نو قاضي به د دوی په مينځ کې بېلتون اعلان کړي او دا بېلتون طلاق دی .

⇦ او که چېرته هغه انکار وکولو او ويې ويل چې نه زما مېرمن دروواغ وايي ما له دې سره جماع کړېده نو بيا به ښځه وکتل شي چې باکره ده او که ثيبة که هغه ثيبة وه نو دی به قسم کوي له قسم سره دده خبره منظوره ده (البدائع)

⇦ او که ده له قسم کولو نه انکار وکولو نو بيا به هم د يو کال مهلت ورکړي .

⇦ که ښځې دعوه وکوله چې زه تراوسه پېغله يم نو نورې ښځې (يوه هم صحيح ده لکن دوه غوره دي) به راوستل شي هغوی ته به اجازه ورکړل شي چې دا ښځه وګوري که هغوی وويل چې دا

پېغله نه ده نو خاوند به قسم کوي چې دا نيزديکت ما ورته کړی دی نو بيا د قسم سره دده قول معتبر دی.

⇦ او که چېرته ښځو وويل چې هو دا مېړمن تر اوسه پورې پېغله ده نو بيا به د يو کال مهلت ورکړي چې بيا هم جماع ورسره ونه کوي نو قاضي به د دوی بېلتون اعلان کړي .

⇦ دا کار صرف قاضي کولی شي که ښځې دا مسئله کومې جرګې يا نورو خلکو ته يوړه هغوی نشي کولی دا وخت ورکړي او يا د دوی په مينځ کې جدايي راولي .

# عدت

عدت د يوې خاصې مودې انتظار دی چې په ښځه باندې لازميږي د نکاح د زوال نه وروسته ، د شبه د جماع نه وروسته ، د خاوند د مرګ نه وروسته .

که يو سړي د يوې ښځې سره روا نکاح وکوله او د دخول نه يا د خلوت صحيحه (چې مېړمن او خاوند دواړه په يو ځای کې سره جمع شي او هلته له جماع نه هېڅ ډول مانع موجود نه وي) نه وروسته يې طلاقه کړه نو دا به عدت تېروي (فتاوی قاضي خان)

که جماع نه وي شوې او تر جماع وړاندې طلاق واقع شي بيا عدت نشته الله ① فرمايي :

سورة احزاب آية ٤٩

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اِذَا نَكَحْتُمُ الْمُؤْمِنٰتِ ثُمَّ طَلَّقْتُمُوْهُنَّ مِنْ قَبْلِ اَنْ تَمَسُّوْهُنَّ فَمَا لَكُمْ عَلَيْهِنَّ مِنْ عِدَّةٍ تَعْتَدُّوْنَهَا ۚ فَمَتِّعُوْهُنَّ وَ سَرِّحُوْهُنَّ سَرَاحًا جَمِيْلًا (۴۹)

ترجمه : اى مومنانو چې تاسې مومنانې په نكاح كړې او بيا مو د جماع نه وړاندې طلاق وركړو په هغوى باندې د عدت تېرول ضروري نه دي دوى ته متعه وركړئ او په ښه توګه يې رخصت كړئ .

او كه چېرته نكاح فاسده وه او د قاضي په حكم دوى سره جدا كړل شول نو كه د جماع نه وروسته سره بېل كړل شول نو بيا عدت وربانديې لازم دى او كه د جماع نه وړاندې سره جدا كړل شول بيا وربانديې عدت نشته (الظهيرية)

## عدت څومره وي؟

⇦ كله په وضع د حمل سره وي .

هغه مېرمن چې حامله وي نو دهغې عدت هغه وخت ختميږي چې كله يې ماشوم پيدا شي كه زر وو او كه وروسته وو دليل يې لږ وروسته راځي .

⇦ عدت كله په حيضونو سره وي .

هغه اصيله (چې وينزه نه وي) ښځه چې حيض ورته راځي هغه كه طلاقه شوه نو عدت يې درى حيضونه

دي كه مسلمانه وي او كه له اهل كتابو څخه وي
.

الله ① پدې اړه فرمايي :

سورة البقرة آية ٢٢٨

وَالْمُطَلَّقَاتُ يَتَرَبَّصْنَ بِأَنفُسِهِنَّ ثَلاَثَةَ قُرُوءٍ

ترجمه : هغه ښځې چې طلاقې کړل شي هغوی به انتظار کوي دری حيضونه
⇦ عدت کله په مياشتو سره وي .

هغه ښځه چې حيض ورته نه راځي يا ماشومه وي او يا ډېره بوډۍ وي نو دهغې عدت دری مياشتې دی او کومې زنانه چې حاملې وي د هغې عدت د حمل وضع کول (د ماشوم پيدا کېدل) دي الله ① پدې اړه فرمايي :

سورة النساء آية ٦٥

وَاللَّائِي يَئِسْنَ مِنَ الْمَحِيضِ مِن نِّسَائِكُمْ إِنِ ارْتَبْتُمْ فَعِدَّتُهُنَّ ثَلَاثَةُ أَشْهُرٍ وَاللَّائِي لَمْ يَحِضْنَ وَأُوْلَاتُ الْأَحْمَالِ أَجَلُهُنَّ أَن يَضَعْنَ حَمْلَهُنَّ

ترجمه : هغه زنانه چې اوس د حيض د راتلو څخه نا اميده شوې وي (زړې شوې وي او حيض اوس ورته نه راځي) که ستاسې پکې شک شو نو د هغوی عدت دری مياشتې دی او همدارنګه هغه چې تر اوسه ورته لا حيض نه راځي او هغه چې حاملې وي د هغوی عدت د حمل وضع کول (ماشوم پيدا کېدل دي)

⇦ که چا خپله مېرمن په حیض کې طلاقه کړه دا حیض یې په عدت کې نه شمارل کیږي عدت به یې له بل حیض نه شروع کیږي اوپه مکمله توګه درې حیضونه به تېر شي بیا به ددې عدت پوره شي .

⇦ او هغه ښځه چې خاوند ترینه وفات شي عدت یې څلور میاشتې او لس ورځې دی که جماع ورسره شوې وي او که نه که دا ښځه مسلمانه وي او که کتابیة وي چې د مسلمان تر نکاح لاندې وي که دا لویه وي او که ماشومه وي پدې اړه الله ① فرمایي :

سورة البقرة آية ٢٢٤

وَالَّذِينَ يُتَوَفَّوْنَ مِنكُمْ وَيَذَرُونَ أَزْوَاجًا يَتَرَبَّصْنَ بِأَنفُسِهِنَّ أَرْبَعَةَ أَشْهُرٍ وَعَشْرًا

ترجمه : هغه کسان چې لتاسې څخه وي او وفات کیږي او هغوی خپلې ښځې پریږدي نو ښځې به یې په ځان صبر کوي تر څلورو میاشتو او لسو ورځو پورې.

⇦ که چېرته یو خاوند په سفر تللی وو څوک راغلل او دوی ته یې په ټینګ ډول خبر ورکړو چې هغه کس هلته په سفر کې وفات شو دوی غمرازي وکوله او ټولې کورنۍ ټول هغه کارونه وکول چې د مړي نه وروسته کیږي (فاتحه اخستل، ژړا کول، میراث تقسیم کول او داسې

نور ...) نو ښځې عدت تېر کړو او د عدت نه وروسته يې د بل خاوند سره نکاح وکوله بيا بل کس راغلو هغه ورته وويل چې ستا خاوند خو ژوندی دی ما په فلاني ځای په فلاني وخت وليدو نو دوی اوس نشي کولی چې ددې سړي تصديق هم وکوي او دده په خبر اوس نکاح بېرته ماته کړي بلکه همدا دوهمه نکاح به روانه ساتي (التتارخانية / البحر الرائق)

⇦ عدت د طلاق او د وفات نه وروسته متصل شروع کيږي او که مېرمن په طلاق او وفات نه وه خبره او په همدې بې خبري کې د عدت موده تېره شوه نو عدت تېر شوی دی (الهداية)



# د عدت احکام

⇦ هغه ښځه چې خاوند ترېنه وفات شي او دا د وفات عدت تېروي نو د عدت په شپو کې به ځان نه ښايسته کوي ، رانجه به نه پورې کوي، نکريزې به نه لګوي ، عطر به نه لګوي ، تيل به نه لګوي ، د ښه بوی لرونکې جامې به نه آغوندي (التتارخانية)

⇦ داسې جامې به نه آغوندې چې دا پکې ښه ښکاره شي او نوې وي همدارنګه هېڅ ډول قيمتي جامې به نه آغوندي او که دا جامې زړې شوې وي بيا يې په آغوستلو پروا نشت (محيط السرخسي)

⇦ که سر د نظافت په نيت ګمنځ کوي نو خير دی او که پداسې ډول يې ګمنځ کوي چې ښه ښکاره شي نو مکروه دی (فتاوی قاضي خان)

⇦ او هغه چې ماشومه وي ، يا ذهني بيماري ولري، يا له اهل کتابو څخه وي او يا د طلاق عدت تېروي په هغوی باندې ضروري نه ده چې ددې شيانو څخه په عدت کې ځان وساتي . (بدائع)

⇦ په عدت کې ښځه له چا سره نکاح نشي کولی او نه به څوک ورته د نکاح پيغام ليږي او هغه ښځه چې د وفات عدت تېروي نو که پدې عدت کې چا ورته په اشارو کې د نکاح خبرې کولې نو روا ده په اشارو کې د نکاح خبرې دا معنی چې د مثال په ډول ورته ووايي (ستا په شان

مېرمنې ډېرې کمې پيدا کيږي زه هم واده کول غواړم د داسې ښځې سره چې په هغې کې دا صفت وي هغه صفت به ورته ووايي کوم چې په دې کې موجود وي او داسې نور) . السراج الوهاج

⇦ هغه مېرمن چې د طلاق عدت تيروي هغه به د ضرورت لپاره د کور څخه نه وزي لکن د خپل کور نه بغير به په بل ځای کې نه پاتې کيږي بېرته به خپل کور ته راځي (الهداية)

⇦ عدت به په هغه کور کې تېريږي په کوم کې چې دا مېرمن د طلاق په وخت او يا د مرګ په وخت کې اوسېده (الکافي)

⇦ که په دې کور کې د کوم شي څخه ډاريده نو کولی شي دا کور پريږدي او داسې ځای ته لاړ شي چې هلته دېته امن ښکاره کيږي (البدائع)

⇦ هغه مېرمن چې د طلاق عدت تېروي د عدت په وخت کې يې نفقه او هستوګنځی په خاوند دي .



# د مېرمن نفقه

⇦ په سړي باندې د خپلې ښځې نفقه لازمه ده که مېرمن غريبه وي او يا مالداره وي جماع ورسره شوې وي او که نه وي ورسره شوې که دا ماشومه وي (چې جماع ورسره کيږي) او که لويه په ټولو صورتونو کې په خاوند باندې نفقه لازمه ده (فتاوى قاضي خان)

⇦ هغه ماشومه چې د جماع قابله نه وي نفقه يې په خاوند لازمه نه ده تردې چې هغه د جماع حد ته ورسيږي که د خاوند په کور کې وي او که د پلار په کور کې (محيط)

⇦ هغه مېرمن چې نکاح يې تړل شوې وي او واده يې نه وي شوى يعني تر اوسه د پلار په کور کې وي هغه هم د خپل خاوند څخه نفقه او مصرف غوښتلى شي لکن که خاوند ورته وويل چې زما کور ته به راځې نو دا به بيا راځي او که دې د خاوند کور ته له راتلو نه انکار کولو که انکار يې ددې امله وو چې دې له خاوند نه خپل حق غوښتو د مثال په ډول ورته ويل يې ماته خپل مهر راکړه چې زه ستا کور ته درشم او د خاوند په لاس کې اوس مهر موجود نه وو نو پدې صورت کې هم نفقه په خاوند لازمه ده او که په خاوند يې څه حق پاتې نه وو يا يې ورته مهر ورکړى وو او يا مهر مؤجل وو نو بيا چې د راتلو څخه انکار وکوي په خاوند

باندې لازمه نه ده چې د پلار په کور کې خپلې ښځې ته نفقه ورکړي . (محيط)

⇦ او کومه ښځه چې په بد اخلاق سره د خاوند له کور نه لاړه شي د پلار په کور کې کيني او چې خاوند يې خپل کور ته راغواړي هغه نه راځي نو ددې ښځې لپاره نفقه نشته . (عالمګيري)

## د مېرمن لباس (جامه)

⇦ همدارنګه د مېرمن جامه چې په عادي ډول د مېرمن کفايت ورباندې کيږي يعني د ژمي د يخنۍ او د اوړي د ګرمۍ لپاره پوره جامه ولري دا هم په خاوند لازمه ده (التتارخانية )

⇦ دا جامه به د خاوند د مالي لحاظ په نسبت وي که چېرته خاوند مالدار وو نو دېته به اعلى جامه کوي او که غريب وو نو دهغه د وس مطابق همدارنګه د مېرمن د کوټې فرش په همدې ډله کې په خاوند لازم دی (السراج الوهاج)

# د مېرمن مسکن ( هستوګنځی )

⇦ د مېرمن د اوسېدنې لپاره ځای هم په خاوند لازم دی او په خاوند باندې لازمه ده چې خپله مېرمن په داسې کور کې و اوسوي چې په هغه کې دده نور کور واله نه وي او که دې د خاوند له کور واله سره په یو ځای ژوند کولو ددې اختیار دی. (العیني شرح الکنز)

⇦ که ښځې نه غوښتل چې د خاوند د کورنی له نورو غړیو سره په یوځای ژوند وکوي نو دا کولی شي له خپل خاوند څخه وغواړي چې ماته د اوسېدلو لپاره بېل ځای راکړه او که په یوه کور کې ډېرې کوټې وي او خاوند ښځې ته داسې کوټه ورکړه چې دې په خپل اختیار هغه بندولی او خلاصولی شوای نور دا د شکایت حق نلري (الظهیریة)

⇦ که خاوند ورته ویل ستا مور خپلوان به زما کور ته نه راځي نو هغه کولی شي لکن مور او پلار یې له راتلو نشي منع کولی مور پلار یې حق لري چې په هفته کې یو ځل د خپلې لورلېدلو ته راشي اګر که د خاوند رضا هم نه وي او خاوند هم نشي کولی مور پلار یې له راتلو څخه منع کړي او دا کولی شي چې مور پلار یې دده په کور کې له اوسېدلو څخه منع کړي (فتاوی قاضي خان)

⇦ پاتې شول نور محارم خپلوان يې د يو قول له مخې په مياشت کې يو ځل او د يو قول له مخې په کال کې يو ځل هغوی هم حق لري چې ددې ښځې ليدلو ته راشي (د يو کال قول خوښ کړل شوی دی) (عالمگيري)

# د ماشومانو نفقه

⇦ هغه ماشومان چې تراوسه بلوغ ته نه وي رسېدلې د ټولو نفقه په پلار ده او هېڅوک ورسره شريک نه دي (الجوهرة النيرة)

⇦ ماشوم چې شودې خوري او ددې ماشوم مور تراوسه ددې ماشوم د پلار په نکاح کې وي او هغه ته د خپلې مور او د پردۍ ښځې فرق نه وي د دواړو شودې خوري نو مور يې مجبوره نه ده چې خامخا به دې ماشوم ته شودې ورکوي او که ماشوم د بلې ښځې شودې نه خوړلې نو بيا مور مجبوره ده چې دې ماشوم ته به شودې ورکوي .

⇦ که دې ماشوم ته بله ښځه پيدا کول کيږي چې شودې ورکړي نو دهغې مزدوري يې په پلار لازمه ده او که دد ې ماشوم خپل مال وو نو ددهٔ د مال نه به هغه ښځې ته مزدوري ورکول کيږي چې ده ته شودې ورکوي . (محيط)

⇦ هغه ښځه چې په پيسو ماشوم ته شودې ورکوي که د هغې سره په لمړي قرارداد کې شرط شوي نه وو نو په هغې لازمه نه ده چې په هغه ځای کې

شودې ورکړي په کوم ځای کې چې ددې ماشوم مور وي بلکه ددې خوښه ده که په خپل کور کې يې ورکوي او که دلته او که په قرارداد کې يې ورسره تعين کړي وو چې دلته به زمونږ په ځای کې شودې ورکوي نو بيا وربانددې لازمه ده او که هغې ښځې بل څوک پيدا کړل چې ددې په ځای ماشوم ته شودې ورکړي نو کولی شي (السراج الوهاج)

⇦ نارينه اولاد چې دومره شي چې کار کولی شي پلار يې کولی شي په هغوی کار وکوي او د هغوی د مزدوري حاصل په هغوی مصرف کړي (الخلاصة)

⇦ او هغه مزدوري چې دده زامن يې کوي څومره چې مصرف کيږي هغه به په دوی مصرف کوي او نور چې اضافه کيږي هغه به د دوی آينده ته ساتي تردې چې دوی بالغان شي او که چېرته پلار اسراف کولو او د خپلو ماشومانو د مزدوريو د پيسو ساتنه يې په سمه توګه نه کوله قاضي به دا اختيار دده له لاس نه واخلي او يو امين به ورته مقرر کړي چې ددې ماشومانو پيسي ورته وساتي او څومره چې په دوی مصرف کيږي هغه وربانددې مصرف کړي چې کله بالغان شي بيا به د دوی مال دوی ته حواله کړي (محيط)

⇦ د لورانو نفقه تر هغه وخته پورې په پلار لازمه ده ترڅو چې هغه واده شوې نه وي لکن که د لورانو خپل مال وو بيا يې نفقه په پلار لازمه نه ده (الخلاصة)

# د مجبورو خپلوانو نفقه

⇦ زوی چې په مالي لحاظ ښه وي د خپلو بې وسه مور او پلار نفقه به ورکوي او پدې سره به دی د قاضي له لوري نه مجبور کول کیږي او هېڅوک مجبور نه دي چې د هلک د مور او پلار په نفقه کې له هلک سره شریکان شي (العتابیة)

⇦ که د سړي زامن وي نو نفقه یې په هغوی ټولو باندې په یو شان لازمه ده او که چېرته د سړي زامن او لوراني وي او هغوی ټول مال ولري نو بیا په ټولو باندې په یو شان لازمه ده چې د مور او پلار مصارف برداشت کړي که د یو سړي یو زوی مسلمان او بل یې اهل کتاب وو نو بیا هم نفقه په دواړو باندې په یو شان لازمه ده (فتاوی قاضي خان)

⇦ که چېرته د زامنو په مالداري کې لږ فرق وو نو بیا به دواړه په یو شان د مور او پلار نفقه ورکوي او که د دوی په مینځ کې په مالداري کې ډېر فرق وو نو بیا به په نفقه کې فرق راځي مالدار به یې د خپل مال په اندازه ورکوي او غریب د خپل غربت په اندازه چې هرڅو فیصده ور رسیږي (الذخیرة)

⇦ که قاضي فیصله وکوله چې دواړه ورونه به په شریکه د مور پلار نفقه ور پوره کوي په دوی کې یوه ورور انکار وکولو نو قاضي به بل

ورور ته ووايي چې ته يې نفقه ورکوه او خومره مصرف چې کيږي نيم په ده پسې حسابوه .

⇦ که نيکه او نيا غريبان وو او خپل مصارف يې نشواى پوره کولى او زامن يې نه وو نو په لمسي باندې د هغوى نفقه هم لازمه ده (المحيط)

⇦ همدارنګه هر محرم خپلوان چې ماشوم وي يا غريب وي يا زنانه وي چې خپل مال ونلري يا شل وي ، يا ړوند وي نفقه يې په هغه محرم خپلوان لازمه ده چې په مالي لحاظ يو څه ښه وي او چې ډېر خپلوان يې ژوندي وي نو د ميراث د حق د حساب له مخې به په خپلوانو دا مصر تقسيموي او په شريکه به ددې مجبورو خپلوانو مصارف ورکوي (الهداية)

⇦ هغه نارينه کسان چې په صحت کې يې هم څه مشکل نه وي د هغوى لپاره به نفقه په نورو خپلوانو نه لازمه کيږي بلکه دوى به مجبور کول کيږي چې کار وکوي او زنانه چې غريبانې وي او څوک د پالنې ونلري نو خپلوان به تر هغه وخته پورې دوى ته نفقه ورکوي ترڅو چې دوى واده شوې نه وي (الذخيرة)

# ماخذونه

- المبسوط للسرخسي

- شرح الوقاية
- حاشية ابن عابدين (رد المحتار على الدر المختار)
- غمز عيون البصائر في شرح الأشباه والنظائر
- العناية شرح الهداية
- فتاوای قاضیخان
- التتارخانية
- محيط السرخسي
- الهداية
- الكتاب
- اللباب في شرح الكتاب
- حاشية طحطاوي على المراقي
- فقه العبادات (حنفي)
- الاشباه و النظائر
- مراقي الفلاح
- الفتاوى الهندية (عالمگيري)
- تحفة الملوک
- البحر الرائق شرح كنز الدقائق

- جامع الرموز
- إرشاد أهل الملة إلى اثبات الأهلة
- المحيط البرهاني في الفقه النعماني
- الجامع الصغير
- شرح رائض الفرائض
- بدائع الصنائع
- تبيين الحقائق شرح كنز الدقائق
- المبسوط
- الإنتصار والترجيح للمذهب الصحيح
- مجمع الأنهر شرح ملتقى الابحر
- النافع الكبير
- نور الايضاح
- منية المصلي



# د مؤلف چاپ شوي آثار

1. د حضرت محمد ﷺ د نبوت معجزې
پښتو

2. ږنګه ځاله
پښتو

3. آشیانه سوخته
فارسي

4. په اسلام کې د انسان حقوق
انګلیسي

5. دین یې دام دی ددنیا په لار کې اېښی
پښتو

6. فرار از کزار
فارسي

7. له کزاره تېښته
پښتو

8. زوړ دین نوی مسلمان
پښتو

9. ډم ډمکو جي او لیکوال
پښتو

10. اديان پشت در
فارسي

11. له دروازې تر شا دېنونه
پښتو

12. د انصاف او اعتدال لاره
پښتو

13. کفري الفاظ
پښتو

14. کل بچه فارسي

15. معلومات عمومي
فارسي

16. د حج لارښود پښتو
او انګليسي

17. محمد رسول الله ﷺ سيرت اخلاق او
پېژندنه پښتو

18. د اسلامي تاريخ له پاڼو څخه اول
پښتو

19. د اسلامي تاريخ له پاڼو څخه دوهم
پښتو

20. د اسلامي تاريخ له پاڼو څخه دريم
پښتو

21. د اسلامي تاريخ له پاڼو څخه څلرم پښتو
22. د اسلامي تاريخ له پاڼو څخه پنځم پښتو
23. د اسلامي تاريخ له پاڼو څخه شپږم پښتو
24. د اسلامي تاريخ له پاڼو څخه اوم پښتو
25. د اسلامي تاريخ له پاڼو څخه آتم پښتو
26. د اسلامي تاريخ له پاڼو څخه نهم پښتو
27. د اسلامي تاريخ له پاڼو څخه لسم پښتو
28. د فقهي کتابونو له پاڼو څخه اول پښتو
29. د فقهي کتابونو له پاڼو څخه دوهم پښتو
30. د فقهي کتابونو له پاڼو څخه دريم پښتو
31. د فقهي کتابونو له پاڼو څخه څلورم پښتو

32. د فقهي کتابونو له پانو څخه پنځم ستاسې په لاس کې

33. د علم حديث مطالعه پښتو او انګليسي